

پرتم ځای دمینې تم دی زما روح
جوړله ښکلی غوندې غم دی زما روح
که ګلپاڼې دې سپیره خزان زخمي وي
واخله کیږده پرې مرهم دی زما روح
ته شاعره،زه غزل یم ته مې لیکه
ستا په ګوتوکې قلم دی زما روح
پستې پښې مې دزړ ګي پرزخم کیږده
ګني مرمه ستا قدم دی زما روح
ستا دیاد ښاپیرۍ خوینده په کې ګرځي
افسانې لري ارم دی زما روح
درنځور ماشوم په شان مې تاته راوړ
چې په دم دی ستا په دم دی زما روح
هوسۍ سترګې دې هنداري دځنګلو
دهوسۍ غوندې په رم دی زما روح
بس کاروان دبکرو ، بکرو ګلغزلو
نه عیسی دی نه مریم دی زما روح

۱۳۷۲/۹/۳۰

# دعشق جبریل ته!

ماوی که لاړې ، ته خوبینا راغلې
دعشق جبریله پرحرا راغلې
ښکاري په زړه کې مې سندرې کرې
دغزلونوله مولا راغلې
زه دتیا روپه سیند لاهو، لاهووم
ته په بیړۍ کې درنها راغلې
څه اراده لرې ؟څه خام خونه یم
چې سره لمبه یې په موسکا راغلې
زما دروح کاروان له تاسره و
ته خوبه وایې چې تنها راغلې

۱۹۹۳-اگسټ دحسن ابدال اوکونډپرلاره



د تنکي زړه مې په اغېزيودي زخمي لاسونه
راشه چې ښکل دې کړمه ګله شبنمي لاسونه
په روح مې شپول دبکرو ، بکرو پلوشو خوروه
لکه چې تاوشي له عيسی نه مريمي لاسونه
دستورو پرک شوم د سپوږمۍ غېږې ته وغزيدم
لکه چې ناوې ته اوږده شي دزلمي لاسونه
ستا سندريز لاسونه دي لکه سوره دقلم
دژوند پر سپين کتاب مې کيږده قلمي لاسونه
ما له کابل نه لاله زارد پرهارونو راوړ
با ګرامه! ما لګې راکوې که مرهمي لاسونه؟

پښنور ،۲۸/ ۵/ ۱۳۷۲

# دلوي خدای په نامه

شاعران یو په نغمو یادوو خدای
ښکلي گورو ، په لیمو یادوو خدای
خدای بلد کړو دتوبو په ماتولو
غړپ کوو له پیمانو یادو وخدای
شیخ دکانو په تسپو یادوي خدای
موږ داوښکو په تسپو یادوو خدای
دژوندون په گوتوبرگی تسپې وایو
هم په ورځو هم په شپو یادوو خدای
یم هیرجن چې هیر مې نه شي راته خانده
ستا له شونډو اننگو یادوو خدای
ایا تونه دې په سترگوکې موسکي دي
ستا له سترگو پښتنو یادوو خدای
موږ کاروان دلیونو آزادي غواړو
په کړی دزولنو یادوو خدای

۱۹۹۳ داکتوبر ۹ پېښور د آزاد افغانستان دلیکوالو ټولنه



کانو مات کړ د هنداروورې نه شته
په کاروان کې د تصویر لاروې نه شته
هره غوړ گه د کابل د پیغلې خورده
پر لمن یې د گلونو ځونډې نه شته
د کودیو د دعالې سورې دي
څه درنه ږلې وریږي ببرې نه شته
مازدیگر یې په زرین تابوت کې یو وړ
د گو در سندري مړې دي شرنگې نه شته
د هوسی تیونه ډک پاتې دي خدایه
بوی د سوي کباب خیژي کبلې نه شته
پرپیزوان مینه راشه زړه مې یوسه
دې یمن کې د غمیو کمې نه شته
څه پیکه، پیکه سیلۍ ده را الوتې
ډک له گلو پیکې نه شته پتکې نه شته
وري داونکو دلیمو له ورشو تښتي
د غمونو لیوه راغی شپونکې نه شته

مگر زړه مې په چنګ د ښو واخلي
ماهي ګیره په سراب کې مهي نه شته
ستا په لاس کې د سندرو سرولی دی
لاس دې راکړه سر مې نه شته اولی نه شته
ذ شبنم په بانه سرې سپرغۍ وریږي
د نسیم د ستوني سوړ اسویلی نه شته
له ملنګ نه د دیدن خیرات توی شوی
د کچکول د پیوندونو پتري نه شته
شهیدان به وي د مینې پرهر ژلي
نن په چم کې هغه سوی زګیروي نه شته
د ښامار د ژامې کولپ ته لاس کیلي کړه
تورو شپو ته دی کاروانه غمی نه شته

۹ د جون ۱۹۹٤

# شاعرانه ارواوې

زما او ستا شاعرانه ارواوې
لکه همځولي ګاونډي ماشومان
له يو بل پټ شي پټپټانې کوي
د خيال په رنګو کنډوا لوکې ګرځي
زما او ستا شاعرانه ارواوې
لکه دوې خويندې ښاپيرۍ په افسانو کې ګرځي
لکه دوې سترې اوښکې
ستر ګو ته نه راځي په زړو کې ګرځي
لکه دوې غبرګې او خوږې سندرې
د زيروبم په جزيرو کې ګرځي
زما او ستا شاعرانه اروا وې
لکه درانه پښتانه
په غم ښادۍ کې په جومات او په حجرو کې ګرځي
په مرکو او په جرګو کې ګرځي
لکه مين اوليوني شاعران
په پښتني مشاعرو کې ګرځي
لکه د خدای دلارې دوه شهيدان

په ښکليو ، ښکليو جنتو کې ګرځي

زما او ستا شاعرانه ا رواوې

لکه جوړه پتنګان

دزيارتونو دډيوو په سرو لمبو کې ګرځي

لکه جوړه شرابيان

په ميکدو کې ګرځي

دومره له يوبل سره مينه کوي

ان چې ديوبل په خوبو کې ګرځي

خو زه ا وته له يوبل لرې ګرځو

لکه ديوی پيړۍ او بلې پيړۍ دوه شاعران

لکه دلر او بر پريو اوبل مين شاعران

چې دنغمو په ګوتو خدای يادوي

خو په تسپونه دبيلتون دزنځيرو په کړۍ

۱۹۹۳ داکتوبر ۵ پېښور



لکه چاړه مې پرزړه تيره شوې پرهر دې راکړ
دابراهيم خوبه قربان دې کړم اختر دې راکړ

دلرېښې دې وې په پښو کې په کنډو پنا شوې
سحر دې يو وړ رانه رنګ دې مازديګر دې راکړ

شاعره مينه دې وه خور د پيغمبرې مينې
دژوند شهيد مې تږې تږې وکوثر دې راکړ

مرګې ماشوم دې ما په کانو ولي هره شيبه
دوجود باغ دې راکړ خوړ دروح ثمر دې راکړ

دخيال تيشه دې راکړه ،تاويل چې ماجوړوه
پرځان مينه وې مرمرمې شوې هنر دې راکړ

اوس مې دزړه پرمات کچکول وهه پترې دغزل
مست قلندر دې کړم دمينې سمندر دې راکړ

پښتون دې کړم دغاصب کانې پرتندې ماتوم
بخت دې هم راکړ خو پخلانه مرور دې راکړ

په يوه کابل دې راته ځومره کربلا کړلې
دشهادت فصل مې واخله چې شمر دې راکړ

۱۹۹۳ دستمبر ۹ له باړه ګلې نه ترنتيا ګلې

# درې سوالیې ؟؟؟

مادبیلتون دشپې پر لویه دښته
دعشق او دردسندرې وکرلې
دې کروندې ته مې دستوروله کوچنیو چینو
اودسپوږمی له ښایستوکې ډنډې
دنور ویاله راوسته
دعشق او درد دشنو سندرو فصل
پوخ شود زړو په شان وځلیده
زه خپلې گرانې معشوقې ته وایم:
ــ له سره سالونه دې ځولۍ جوړوه
چې دپخو سندرو
دطلایي وږو گیډۍ درکوم
ورځه، ورځه چې کله ستړې شوې او تللی نه شوې
پر هغه لوی کنډو دمه جوړه کړه
دسندریزو طلایي وږوله هرې دانې
ځان سره ووږو ، ووږو زمزمه جوړه کړه
ستا زمزمه چې واوري

*****

تا دسالو په پیڅکه غوټه کړه موسکا دګلاب

او دمودو مودو مرموزه بیماري دنرګس

او تا کړ غوټه د یتیم دسوې ساندې په څپر

دشپې دهغه توربلبل سندره

چې درښا دغزلونو په تور

چاپرې نوشلي وي رانجه دتیارو

*****

ستا په لبمو کې غزونې کوي

دزوړیونان دبیلیتیس هغه یاغي او غزلیزخوبونه

چې په تعبیر یې دشعرونو شهنشاه پوهیږي

ستا کوچانۍ او ستا ملالې سترګې

زما دروح دلالهاند لا روي

دښایستو کو غم انګیزو خاطرو دمه ځای

په کې روان دي دزرینو انځورونو کاروان

په دې کاروان کې ماښامونه باردي ستوري باردي

دسپین سبا دغزلونو زرین توري باردي

یو لوری نه دی پکې تول واړه شپږ لوري باردي

پکې رنګونه دګلونو باردي

ددې کنډوو سرته یوه ښکلې بنګړي واله راځي
پرسرېې ایښې ده زرینه بوخچه
دښکلیو وړانګو له بنګړیو ډکه
دسندریزو طلایي وږو ځولۍ به ورکړې
بیاوراوډې کړه تشې سپینې مرمرینې لیچې
چې درته ډکې یې کړي
دښکلیو وړانګوله زرینو بنګړو
پستنه راشه لکه خنداته شنه شه
زما له غاړې تاووه دبنګړو ډکې لیچې
هغه پستې هغه وریښمینې اونازکې لیچې
زه په ډالۍ کې یوه مسته ترانه ورکوم
که چا ځواب راکړچې څوک یمه زه؟
دمعشوقې نامه مې څه او بنګړي واله څوک ده؟؟

۱۹۹۳داګست ۲۳مه



دحـــور وپه مـــوسکا یې التـــفـــات نه ورکـــوم
کـــعـــبـــه مـــې پرغـــونډۍ دعـــرفـــات نه ورکـــوم
اشنا مینې دې شوم کړم په هیـچا مې پیـرزونه شي
سکـې دزړه دزخم پـه زکـــــات نـه ورکـــــوم
ســــروش راته راوړی دسندرو له مـــ ـــولانه
ســـرود ،دخـــرابات په مناجـــات نه ورکـــوم
دمخ په سـیـپـاره کـې یې ایت دحـسن پټ دی
یوټکی دآیت په کـــرامـــات نه ورکـــوم
غـاټول لیـوني شـوي دځـیگر بخـري غـواړي
ســپـرلی به واخلي اور بخـري زیات نه ورکـوم
موسی ستا دموسکا چې کړو نشه یـتیمو اوښکو
داپړک دکـــوه طور په تجلیـــات نه ورکـــوم

زما شاعر معشوق راسره کړي شطرنج دعشق
شاه مات هم ورکولی شم شاه مات نه ورکوم

شاعر مې «شینکی باغ دی یادشنوونو ځنګل دی »
دابیت دشاعرانو په کلیات نه ورکوم

دروح دګلو پاڼه مې په پښتوکې ورته کېښوه
وي زه خو ملکه یمه زه شات نه ورکوم

تالا به شي ترغه به شي کاروان دلیونیو
ځاروان وایي وعده دملاقات نه ورکوم

۱۳۷۲/۹/۲۸ پېښور

دارو انبار داستاد روهي په ياد!

# نــذر

تورکاڼي دې وتراشل هنداري دې ترې جوړې کړې
مړې د تصوير سترګې وې خمارې دې ترې جوړې کړې
چوپو کليمو ته چې موسکی شانې په مينه شوې
وې ګونګې بلبلې سندرمارې دې ترې جوړې کړې

ژوند زمونږ کوتره شو اوستا دبڼلتانه شپې.
راغلې وريسې دباز نوکارې دې ترې جوړې کړې
زړکې مو په غرونو کې کوکارې دبڼلتون وهي
زاڼې مو بې ميره دي او نارې دبڼلتون وهي

ژوند دې و تپه، تپه په روح دملالۍ مين
ته وې پر خوشحال مين او ته وې پر سيلۍ مين
شغ دې دنښتر دڅنو خوښ و شغ دغشو نه
ته وې دهوسۍ پر خوا او ته وې پر کبلۍ مين

خوښ دې و بې حده په قرآن کې د «رُمان» تيکی
ته د «روه» پر ژبې مين ته په روهــــيلۍ مين

مخ دخپل جانان دې په « ویدا » په « اوستا » کې لید
تا داوښکو خدای دیتیمانو په موسکا کې لید

څومره په تمکین زمونږ په مخکې وې آمیر روان
تا پسې و ،ورروسته پر سندروبار بهیر روان

زړه کې به دې څریکه د دردونو را روانه وه
پاس به چې هواکې وکوترو پسې تیر روان

یه! زمونږ زرینه خوبه ستړې یو لږ رایشه
گوره درپسې مو په تنیاکو پښو تعبیر روان

خپلې سپینې تورې رانه سر په ولجه وړی دی
تورې بلا شپې رانه سحر په ولجه وړی دی

ته د گل په دین وې تا بلبله له زړه جوړه وه
وزن دسندروته دې تله له زړه جوړه وه

تا په کې پاللو یو دمینې لیونی ملنگ
تا دخپل ارمان په لاس کوډله ،له زړه جوړه وه

هلته به وزرې سوځیدې دبدرنگۍ ددپو
تا دښاپیریو دنیاخپله له زړه جوړه وه

وروایه چې چاته دې پر سر زرین پټکی ایښی
مونږ ورته په نذر کې دمینې ډک زړگی ایښی

چیرته یې امامه بې اختره بې براته یو
پاتې په لمانځه کې هم دمینې له رکاته یو

نه شته څوک چې ښتر ګې مو د طور په رنجو تورې کړې
لرې غور ځیدلې د جانان له التفاته یو

تږي يو د بر تږي يو خو لېپې مو د زړه سورې
ځکه خو بې برخې د سندرو له زکاته یو

لاس دوړانګو راکړه داشنا خواته مو وروله
مونږ ه نظر ستړي د بڼو شاته مو وروله

تاوې چې شپه ناوې کړئ سپوږمۍ په ګډا راولئ
لمرهم د شاهو په شان پر تخت د سبا راولئ

تور لوګي د جنګ جارو په پرو د کوترو کړئ
څوک د سنځلبو يو څنو بوی په هوا راولئ

تاوې چې لوی رنځ بې وطني ده او درمان ته يې
وخیژئ آسمان ته ورپسې مسیحا راولئ

ته لاړې بل نه شته چې له زنګه غمي وساتي
خدای خو دې د کانو له هرجنګه غمي وساتي

پېښور، ۱۹۹۶/۶/۱



که سپین زمونږ وینبتان شول که زړ ګي زمونږه شنه شول
دپرښکلي مو کړلي وو په زړونو کې شنه نه شول
اغزي پاتې ،ګلونه دغزل ،بادونو یوړل
دشاتو دمچیو په شان توري رانه مړه شول
زمونږ دسر هنداري یې په کاڼو ویشتلې
دخدای تصویر یې نه لیده لاسونه یې ړانده شول
له اوښکوله موسکا نه ورته نوي کالي جوړ کړه
کاروانه دغزل دجینکو کالي زاړه شول



ژوند مې دسپین ستوري په څیر خوښیږي
او له سپوږمۍ مې لاس چاپیر خوښیږي
شاعر سړی یمه رښتیا به وایم
دا ښکلي نه دي !دا مې ډیر خوښیږي



دخپل قاتل دعا ته وایو آمین
مونږ دژوندون پرسکه اخلو تسکین
شوو اسویلي دډکو ډکو زړونو
اوس به یې وسپړو غوټۍ دجبین
زمونږ ایمان پر پیغمبره ښکلا
خدای پیداکړي یو دمیّنې په دین
شول مو تندي دکشمالیو کودي
دی مو آسمان ستا دخندا په شان شین

۱۹۹۶ پېښور



لکه غوټۍ رانه مخ نه پټوي
دګل په پاڼو کې مې زړه پټوي
غلي دروغ له دروازو نه راځي
صبر مې ستا دنظر غله پټوي
ملګرو ما داسې حسین لیدلی
له ویښو سترګو نه رانجه پټوي
مینه ماشومه شوه شرمیږي هم نه
رانه تنۍ دګریوانه پټوي
ددوو نرګسو غوندې ښکلي ښکاري
داژوند مې دوه ښکلوکي مړه پټوي
دې زمانې خومره بدرنګ راوړي
له منرغلرو نه اوبه پټوي
چا په کې زړونه دلیوانو ایښي ؟
چې له رمې نه وري شپانه پټوي

۱۹۹۶ پېښور

# سپوږمۍ

شوه شنه زما په زړه کې تورو غرو سره سپوږمۍ
ما څښلې وه د غرونو له اوبو سره سپوږمۍ
ما شوم چې وم خوبونه به مې دغه شان لیدل
پرته به مې وه غیږ کې شا پیرو سره سپوږمۍ
پیدا به کړې اخر ورته لیوه داړلي وري
په ورکه پسې ګرځي له شپنو سره سپوږمۍ
له لرې مې لیده چې پرګو در یې و نظر
ولاړه د جوماټ له منارو سره سپوږمۍ
نښتر د ځانګو ږمنځې پرې ورو ورو راتیروي
سینګاریې کړه د ورانګو د کمڅو سره سپوږمۍ
بیګا آسمان کې راغلل دفولادو شاهینان
کوتره شوه راپریوته لمبو سره سپوږمۍ

يکې کعبه ده ،ميکده ده ،خانقا بارده
يکې صوفيان اوصوفيانه مسته نڅابارده
چې يې لستوني دخرقو په الطهور لامده دي
دسترګو کسي يې په اوښکو دمنصور لامده دي
يا آياتونه دقرآن دترنم په سينه کې
هم دتورات هم دانجيل هم دزبور لامده دي
ته دښکلا دغره پرسر ولاړه
دغزلونو او سندرو ونه
دخيال رينبې دې درنګونو سمندرته رسي
ته يې وينوس دتخيل دمرغلرو ونه
ته دخپل ژوند پرشهيد
لکه ولاړه لوحه
سرنه ترپښو له مرثيو او له ويرنو ډکه
ته لکه سپينه دمرمرو ونه
تادارمان پرکلي سيوري کړي
ځانګې دې ډکې دمرا د له غوټو
ته دخپل کلي دزيارت دمنجاورو ونه
له تانه سوال کوو سندرې غواړو
ته دسندرو دسوالګرو ونه

ښکاریږي چې له لمر سره یې تاردمینې دی
راوخته کنډوته له وعدو سره سپوږمۍ
وږه ده پټېپټانې له وږو سره کوي
په ژبه ښه پوهیږي له وږو سره سپوږمۍ
له رشکه یې زړه وخوړ شوه کږه لکه لینده
سیالي یې کړه له نجونو پښتنو سره سپوږمۍ
ډیوې د سپینو ستورو یې په شنه پلو کې وړې
روانه وه کاروان کې اوښنو سره سپوږمۍ

١٩٩٦/٣/١٢



ظالمه شپه ده زړه سوی لږ شان هم شمال نه لري
زمونږ غریبه دیوه ګی دشیشي شال نه لري

دجومات ونو منارو ته یې توپونه جګ دي
کلی مو شکلي اذانونه دبلال نه لري

راغی اختر پیغلو تې زانګي دغمونو پرتال
تبرونو لاس دچنار غوخ دی وریښمین تال نه لري

دیوه بدرنګ دخنجر څوکه سره په وینو وینم
یوه ښایستوکې شین خالی پرزنه خال نه لري

چاتورولي، توري نیش لکه ببري وهي
قحط الغزل دی غزلتوري غزلپال نه لري

چا په پنجه دپرانګ لیکلي دهوسی پرخرمن
چې دهوسی وینې مباح دي او وبال نه لري

دزړګي مست کب یې دنګلي دسندرو سیند ته
کاروان ته څنې په لاس ورکړه غریب جال نه لري

۱۹۹۶ دکوچني اختر لومړۍ ورځ



په مستو سترگو کې دې نن وکړه تول رنگونه
څه د نرگس ،څه د گلاب ،څه د غاټول رنگونه
افسانې نه دي ديو چا دي مستعار نومونه
چې ترېيو تورو يې دي څنبلي يو کنډول رنگونه
د دانو وړی نه يم رنگ د تورو سترگو راکړه
سپينې لمنې ته مې وړمه په کچکول رنگونه
لکه چاړه مې پر زړه تيره شوې زخمي دې کړمه
اوس به دې کړم له خپله درده سره تول رنگونه
د خيال رمه سا ته کاروانه ،عقل وړی ليوه
د نظر مخې ته يې ودروه شپول رنگونه

۲۰/ ۱۰/ ۱۹۹۵۹ پېښور ،دنثار صاحب حجره



زمونږ له بر کلي راوړي آباسین مړي
په سپینه ورخ ګرځي په تور کفن کې سپین مړي
د بلبلانو په ویرنو کې ژوندي پاتې
د ګلابونو، د نرګسو، د نسرین مړي
خدای ته ورغلي خدای زده ولې خدای بخښلي نه دي
زمونږ د ستړیو دعاګانو د آمین مړي
بیا به وزرلکه جنډې د آزارۍ رپوي
که راژوندي شي د عقاب او د شاهین مړي
د پتنګانو په ایرو پټې شهیدې شمعې
پرې راوریږي د ښایسته ستورو زرین مړي
اوس مو د زړونو په زخمونو کې اغزي تو کیږي
له مونږ نه تللي مروردي ګلورین مړي
یادې داوښکو په ډیوو مینځم تازه یې ساتم
په هدیره کې مې د زړه اوسې حسین مړي

۱۹۹۵ د ستمبر ۲۲ پېښور



سورغا تول دداغ له توره راوتلی
دشهید مری له گوره راوتلی
دبنگړو په شرنگ یې ونمنځه شاعر دی
دبشر له شروشوره راوتلی
ابراهیم دسپینو اوبنکو ته سلام دی
سلامت دزره له اوره راوتلی
ستوري خپل مې په پردیو شپوکې وینم
هر یو زاړي او په زوره راوتلی
په نظر کې پروت دبوري هوسی غشی
دی له پلي که له سپوره راوتلی؟
دي ملنگ دي لیوني کاروان ته گوریٔ
په غزل پسې له کوره راوتلی

پېښور، ۱۹۹٦/۷/۲٤



نن يې د سـرو سـتـرګـو انداز بدل دی
د زړه کــوتره مــې وړي باز بدل دی
پـرلـيـــونـي نـظـر دې پـام لـره لـږ
کــوڅـې هـمـاغـه دي غـمـاز بدل دی
رانجـه يې نو ش کـه يې خـوړلي اغـزي؟
د بـلـبـلانـو مـــو آواز بـدل دی
کلي مـــو ټول بامـــونـه بيـــا وبايلل
سـپـينو کـوترو مــو پرواز بد ل دی
خدای مې آشنا شو که آشنا مې شو خدای؟
کـه حـقـيـقت مـې په مـجـاز بدل دی؟
د ښکليـو سـتـرګـې د «حـافظ»غـزلې
راتـه باګـرام يې پر شـيـراز بدل دی
راتـه يې خـوی ښـه نه دی وژني مـې نن
جـاريـې شم نن يې خـنګه نـاز بدل دی؟
پام مـې د مـيـنې پر مـحـمـود نه لري
نن غـنمـرنګ غـونډې ايـاز بدل دی
د کــاروان زړه کـې شـو په غـوټه بدل
چاتـه يې نـه سـپـړم په راز بـدل

# چنار خبرې کوي

زه د بر کلي د ګودر د غاړې
يو شين چنار وم ، چنار
هر ماز ديګر به راته سلو نجونو
په سرو منګولو سلامونه کول
سحر وختي به مستانه پېغلو به
زما پرتېتو او خورو څانګو او به شيندلې
زه به په ناز لکه خوب وړى زلمى
څه غلى ، غلى غوندې ويورېدم
له شينکي خوب نه د پېغلو په خندا ويښيدم
له ساړه باد سره به اخوا دې خوا
لکه د تال زنګيدم
او د ګودر او بو به
راته چمبه وهله
لکه ملاله پښتنه پېغله دوروتو په وړا
په شنه ګيډۍ ، ګيډۍ کميس کې ګډيدم ، ګډيدم
کله نا کله مې په غلي ما نياه

له سپینو خولونه د تودو مچکو خرپ اوریده
لکه غوږونه به مې
دڅانګو ،څانګو په لاسونو کې نیولې پاڼې
مابه د دوو مینو
دبنیو ګانو هریو رپ اوریده
بیا به مې باد ته ښورول لاسونه :
غلی شه خدای ته ګوره شورمه کوه!
خدای زده چې ولې به دباد غماز ګر
راسره رخه کیده
ددوو مینو ننداره یې په ما نه لوریده
لکه چې مست ښامار زنګیږي دچنډن پر څانګو
داسې په خرپ به یې کړې ماتې رانه غبرګې څانګې
پاس به له څالې نه جوړې بلبلې والوتلې
لاندې به هم غلې شوه
دتودو شونډو دمچکو خرپا
زما په زړه کې به وې څړیکې تر سهاره خورې
سهار به لمر راوخوت
نجونو به بیا په سلامونو باندې وګمانځلم

لمر به چې څو نيزې له غره راجگ شو
دگودر غاړې نه به وکوچيده
دمستو نجونو دمنگيو کاروان
مهار دوړانگو يې په لاس کې و دلمر دځاروان
لمر به دوړانگو په تودو لاسونو غوټه کړلې
زما دغبرگو ماتو ځانگو له رگونو سره
خرپ دمچکو اوسندرې دجوړې بلبلو
لکه ماشوم به له خندانه شين شوم وبه مې وې:
ـــ اخ خدايه بيا دچا ښکالو راغله؟
بيا مې په رگ ،رگ کې خورې شوې څړيکې
هغه دې بيا مين زلمی راغی
چې دا زما دماتو ځانگو خواکې څه لټوي؟
هغه دې ټولې يې کړي
ټوټې دماتو بنگړو
او مرغلرې دشکيدلې امېل
هغه دې غوټه يې کړې
دسره دسمال په پيڅکه
ښايي چې دادسمال هم

چا ورته جوړوي په وریښمینو ګوتو

مابه له زړه سره پټ پټ وخندل:

خدای ماته هم مین زړګی راکړی

چې دمینو په راز ښه پوهیږم

زلمی به غلی، غلی

لکه ښکاري نه ترهیدلی غرڅه ماته راغی

اخ څه ښایسته و زلمی

اخ څه ظالم و زلمی

چې په تیره چاکو یې

زما په تاند او په غوښن تټرکې

دخپل معشوق دنامه

شپږ نه اووه توري ژوړ ولیکل

زما تټرکې یې چاکو وښوييد

ښايي زما دناز ښېرې وواهه

ګوته یې هم شوه برسیرنه ژوبله

چې په تودو وینو یې

دخپل معشوق دنامه توري سره شول

ستاڅانګې څانګې دې يې خدای له سره نه کموي
ته دالهام دمسافروونه
ته په څلور فصله ميوه ورکوې
له څانګې څانګې نه دې زانګې دغزلوو ږي

*****

ته دنبکلا دغره پر سرولاړه
لکه مغرورداو سرکشه وونه
سردې آسمان ته رسي
په څانګو څانګو کې دې ناست دسندرومارغان
ستا دسندرو مارغان
که زمونږ کلي ته په سېل راشي
زمونږ دغرونو څېرې غوڅې اونښتر شهيدان
زمونږ دکلي له چنار چناره
دشهيدانو تابوتونه جوړدي
زما په لپه کې دې ځالې وکړي
ستا دسندرو مارغان
.......خو که دونې ددووڅانګو په څېر
زمالاسونه پر تبرونو چاغوڅ کړي نه وو!
پېښور، ۲۸/ ۱۰/ ۱۹۹۵

په وینو سره توري يې
په مینه ،مینه ښکل کړل
زما په رگ ، رگ کې
دخوارهٔ درد څرېکې خورې ورې شوې
خورې ورې څانگې مې
لکه داورلمبې شوې
سېل دمارغانو رانه والوتو
ښايي په دې پتو لمبو باندې يې پښې وريتې شوې
هغه مین زلمي زما دوجود
دوې ماتې غبرگې څانگې کورته يووړې
بيا به مې آن له شفقي ماښامه
ترسپيده داغ پورې نغمې اوريدې
دسريندې له نري تاره ،تاره
دمست رباب له مستانه شاتاره
څه په خندا به مې په غيږ وريده
دشنه آسمان دسپينو ستوروله رڼو سترگونه
دپلوشو داوښکو داره ،داره
زما تر زړه به يې کړه ښغه تېره
دوړانگو سپينه لاره
پاس دښايست پرښتو

راته نیولې وه رنه هنداره
شینکی آسمان به مې دځان سکه تصویر ګڼلو
اورانه ستوري مې دخپلو ځانګو
سپینې مرغۍ بللې
داسې زما دژوندون
پیغلې شیبې تیریدې
لکه دپیغلو تکې سپینې لېچې
دشنو بخملو له لستونو راوتې تیریدې
داسې یو څو شپې وې دقدرشپې وې
چې وینې به ناست وم ترسهاره پورې
چې ټوله شپه به مې څارلې دمینو لارې
زما به پانه ،پانه غوږ،غوږ وه
دهغې مستې سریندې نغمو ته
چې په لیندۍ کې یې یو څو تاره دځنو هم وو
له کاره ویستې ومه شرنګ درباب
چې په سینه یې ددرخو دلاس ځوندې زنګیدل
پرون چې بیا لکه دناوې زلمی
دنجونو منځ کې ناست وم
ناڅاپه کړیکې شوې دوای مورې نارې خورې شوې
په ځان خبر هم نه وم ځانګې مې ارې .ارې شوې

بنګړي ذرې ،ذرې شول
منګې کودې ،کودې شول
څنې لمبه ،لمبه شوې
شالونه باد يوړل
پاس مې آسمان ته کتل
زما پر خوا و په غړمبا را روان
لکه يو ستوري له مداره وتی
لکه يو غشی له پرهاره وتی
داورابليس دملايکو له کتاره وتی
پرجوماتونو پر حجرو پر ګودرونو پريوت
پر سر دمستو چنارونو پريوت

*****

زه دګودر په غاړه نه يم ولاړ
ماسل زلمي سل جينکۍ په غيږ کې تينګ نيولي
زه دکنډو پر سر په لويه هديره کې ښخ يم
زما په هر تابوت کې
يو ګودر وينې ښخې
يو ګودر اوښکې ښخې
زما دهر تابوت پر هره تخته
دعاشقانو معشوقو نومونه

دگور چینجو خوږلي

زما له ځانګې جوړه شوې سرینده ده ماته

په تش ګوګل کې یې دغم توره پیشو ده ناسته

خوله یې په وینو سره ده

دژوندله ښکلیو ماشومانو یې خوبونه وړي

دکښت دپیغلو پر سینو نه شته دردنو ځونډي

زمونږ دکلي دبامونو دسر

رووږدې کوترې وزې

زما دځانګې له رباب نه دشکیدلي ځونډي

وچې مرې تیروي

*****

زه دبرکلي دګودر دغاړې

یوشین چنا روم چنار

زه دګودر په طبع ښه پوهیږم

ګودر شاعر غواړي چنار غواړي

ګودر دسیلو منګو

رنګین کتار غواړي

ګودر دغرونو ،دځنګلونو دپیغلوتو چینو

کاروان مهار غواړي

١٩/١١/١٩٩٤ پېښور

# د ګلونو ترکاروانه

مروري مستي زانې به بيا راشي
کتوري به له سندرو نه ډک راوړي
دښکاري لاس به وچيبږي ترځنګلو
ورپسي کړه به لينده يا ټوپک راوړي
دغه تږي ماشومان ګلونه ، نه دي!
خداى به دوی ته هم د پرخي پتک راوړي

هوسۍ سترګي به وي بس غزل ويونځ
بې له ترهي به کبلي روي تيونځ

په ځنګلونو کي تش نسي لويې ونې
چي پرون په مرد کو سورۍ ،سورۍ دي
داسوري به د ګلونو دروازې شي
ملکي پسي په ګلوبار مچۍ دي
اوزخمي ونې به ډکي شي له شاتو
له ترخو وختونوپس خوږې ګړۍ دي

پردی لاس به غوځ ،مات غاښې به اړې شي
په شغ ،شغ به دښمن ته ځنې خوږې شي

د آسمان تلې به ډکې کړو له ستورو
پړ دانو د سپینو ستورو به لمر واخلو
که هر څو د شپو په شال کې رانه پټ دی
خامخا به خوله ،له ښکلي سحر واخلو
صبر وکړئ د صابرو مولا مل دی
بیا به ډېر له ښکرورو نه ښکر واخلو

ځئ چې ځو چې په ځولۍ کې یې نن راوړو
د هر بام روږدي کوترو ته ږدن راوړو

چې پرون یې خوله دوري په وینو سره وه
د هغه لېوه څرمنه به چمبه شي
یا قربان به په ګډا له ستوني وځي
او تپه به د ژوندون هره شیبه شي
په واده به یې پېغلو ته خور ګډېږي
د شهید د کشر ورور شوندې به شنه شي

سور د تور پیکي غاټول به راژوندی شي
داتن له پاره ډول به راژوندی شي

شنې درې به له درانه خوب کاراوینې
دشپونکي دشپیلۍ غږ به خوراو ،وورشي
دګولیو دغږ داغ به دواړه مینځي
دا آواز به دقمري د «کوکو» وروړ شي
ماشومان به زرغونه اوشنه طوطیان شي
په دې چوپو مکتبونو کې به شورشي
پرچنار باندې به لمر وزر خواره کا
شین چنار به پر ګودر وزر خواره کا
سره بیا به شي پخلا لکه پښغلوټې
غیږ په غیږ به مزورې چینې راشي
تصویرونه به دښکلیو نجونو راوړي
په ویالو کې به رڼې آیینې راشي
کوچانۍ مینه چې زړونو ته ورلیږدي
دې کیږدیو کې به ځنګه کینې راشي
په ګلونو کې به تک وهي بیا مراندې
کوچانۍ دلمر دښکلي سبا مراندې

تورديوان اوسپين ديوان به پسې واخلو
د «ملوک» په افسانه کې به روان شو
څلويښت خويندې ښاپيرۍ به کړو راويښې
ځلبلانده به غمې دسليمان شو
له «ملوک» او له «بدرۍ» به راتاويږو
لاروي به دګلونو دکاروان شو

په سيلونو دکوترو کې به ګرځو
په غزلو په سندرو کې به ګرځو

دکمر په هغه درز کې به ګل خاندي
چې پرون توغندي ويشتی و په تشي
پروت په پرښه کې دبم زخم به جام شي
پکې شپون به پيوره وزه لوشي
هم هغه فولاد به نوکې دقلم شي
چې پرون ترې جوړيدې څوکې دغشي

لکه توري په کتاب کې به اوسيږو
دنغمو غوندې رباب کې به اوسيږو

پر تو پونو به رانجه وخورو چې گونک شي

اذانونه دبلال به راژوندي کړو

له مارانو به زهري غاښونه باسو

چې ژوند اخلي مړه به هغه توغندي کړو

تشې لپې به يې ډکې له دعاشي

کشمالو نه به ډک ،گُل واړه کودي کړو

تور بلبل به بيا دشنه چمن خطيب شي

سپين شبنم به درنځور نرگس طبيب شي

دشيطان په غوږ به تېک وهو ميخونه

پرښتو ته به په زړونو کې ځای ورکړو

چې مسيني شيبې تولې کړي زرينې

راپيدا به دوخت داسې کيمياگر کړو

دښکلا دتصور ديدار به وکړو

پرهندارو به راتير لاس دجوهر کړو

شپې دې راشي درڼا نيلي به زين کړو

ساده ژوند به دطاووس غوندې رنگين کړو

نغاري به وډنګيري دا به وايي:

ــ «ننداره ده اووه سري ښامار وژني
لوی سيمرغ درنې غونډې پر وزر باردي
پرې قاتل دباندو، کليو او ښار وژني
نور به هغه زهرجن لا سونه مړه شي
چې کب وژني، او به وژني، بهار وژني
دزرين سيمرغ بچي به رازلمي شي
له ښامارنه به راپاتې ډير غمي شي»

۱۳۷۵ ---وږی



زړه یم خـــو ددرد پـه پسـرلـي پرهـار راســـره ځي
وخت لـکه لیـــوه غـــونډې پـه لار راســـره ځي
ښکلیـه ستـا پـه مستـه منصوري مینه بدنام یم
دار راســـره دروسي او سـنګســـار راســـره ځي
روغ وم لیـــوني یې کـړم تندی یې را تـه مـات کـړ
کـــاڼي پـه لمنو کـــې هوښـیـــار راســـره ځي
غوټۍ یې کړتابوت یې کړ ستـا نوم به مې لیکه پرې
ســـتـا پـه نامـه خـاورو تـه چنار راسـره ځي
تول شپـه سپـوږمۍ پـه ورکـو ستـورو پسـې ژاړي
لمر پـه وینو لژند هر ســـهـــار راســـره ځي
دې دزړه ګـلـدان مــــــې ډ ک دزخم لـه ګـلـونـو
نه مـرمـه ،مـالګین ،حـسین مـالیـار راسـره ځي
ستـا پـه یوه تصـویر پسـې پـه ورکـو لارو سـر دي
ګـــوره دهنـدارو کــاروان بـار راســـره ځي

هشنغری، پسرلی ۲ دجولای ۱۹۹۳

# ليلا

جامې يې سپينې
د تورو څڼو
تر غرونو لاندې
د نګه ولاړه
نرۍ نروچکې
چنګه ولاړه
يوه باغچه يې
د سرو ګلابو
پر سر نيولې
مجنون شاعريې
تر څنګ ولاړ دی
د زړه کچکول يې
لاس کې نيولی
ملنګ ولاړ دی

گوتې يې وسوې
سګرټ يې لاس کې
ايرې ،آيرې شو
خيالي ليلا يې
آسمان ته لاړه
سپينې جامې يې
په تاخ کې کېښوې
. دسپينو ستورو



نرګس رنځوردی دشبنم طبيبه لاس يې نيسه
مرګی ترې وباسه يودم دزېړی تبې په شان
سرې خواره پرې چارچاپير لکه غاښونه ولاړ
جانان مې وساتې مولا ، پکې دژبې په شان

# دشپې ماشوم شمه زه

کله چې لمر پر کلي سرووهي
اوشپه دورانگو په خنجر ووهي
په تودوشونډو پیزوانونه ښکل کړي
زرین لاسونه پر گودر ووهي
چې ماشومان په قلمي گوتو په سپینو کاغذي لاسونو
توري تختې راواخلي
په بلبلي ژبوالف و وايي ،بې ووايي ،تې راواخلي
ما. رايادې شي ماشومې شيبې
کلی ،گودراودگودر له غاړې
اخوا په برام ولاړيوشين چناريو ښکلی چنار
دچنار لاندې يو وړوکی جومات
چې يې محراب و اوبو وړی اوممبر يې نه و
کولپ او زنځيرخو يې پر ځاى پريړده چې وريې نه و
فرش يې دخوړ پستوکې شگې وې تغريې نه و
چې هرسحر به لمر له پورې غره راوښړل

دورانګو غشي

دچنار لاندې په اوبو کې به خورې شوې

دطاووس بڼکې

مونږ به هم راغلو لکه سيل راشي دشنو طوطيانو

دچنار ډډ ې ته پر توره تخته سپين ليکونه

پر مونږ خواږه لکه دقند او دنبات لګېدل

زړه راته وايي پاڅه بيا ماشوم شه

خو زړه ماشوم دی په دې نه پوهيږي

ما په کتار دماشومانو کې پريږدي کله څو ک

غواړم ماشوم شم أو پر توره تخته

نوم مې دهغه جانان وليکمه

چې اول ټکی يې اخيستی دی دخدای له نامه

غواړم ماشوم شمه او ټولې تختې

دخپل جانان په نامه ډکې کړمه

خوزه له خپل عمر شرميږم

ماشومانو ته ورتللی نه شم

په جګو سترګو ماشومانو ته کتلی نه شم

ځکه زما همزولي

دماشومانو کوټني ږنګوي

قلم ، تختې او مشوانۍ ماتوي

اوپه لوی لاس ترینه ماشومه دنیا گی ړنگوي
په سپینه ورځ له ماشومانو نه په ځنګ تیریږم
خوشپه! . . . . قربان یې شمه څومره پرده پوښه ده شپه!
ماشومان ټول په خوب ویده وي اوزه
له ماشومانو نه په غله
اوپټ په پټه په ماشوم بدل شم
اوزه ماشوم شمه داوښکو په ماشومو ګوتو
دسپینو ستورو تباشیر راواخلم
دشپې پرتوره تخته
نوم دجانان ولیکم
افغانستان ولیکم

۱۹۹۶/۹/۷ ناصرباغ نوی کمپ، پیښور

ابښې سندرمارې ښاپیرۍ پکې هنداره ده
زړه دسندریزو تصویرونو ورکه لاره ده

هرلوري ته منډې وهم ګورم یې خوښکاري نه
غږ یې راځي ناسته په هرلوري سندرماره ده

یوه ټپه له صدقه دملالې له زړه پورته شوه
غوره دریا له تکبیرونو په زړ واره ده

سل ځمه دخدای په هریو نوم له ساقي غواړمه
ژوند مې لویه تنده له خماره تر خماره ده

تورې دلوګي جامې یې اوردښکلا پټ ساتي
سره لمبه راوتې دبرکلي له چناره ده

یوغشي یې وشاړه او سل غاټول یې ووژل
توی پرې توده وینه دهوسیو له پرهاره ده

ورکه هغه زانه چې کتاربه پسې زانې تلې
رب دې یې پخلا کړي مروره له کتاره ده

ګرځي بدرګه دسپینو ستوروپسې ورکه ده
ورکه ده سپوږمۍ لیونۍ چاوې چې هوښیاره ده

دارلرې کاروانه چې بنګې به یې وباسي
پټه شاعري دې له *نشاره خطاکاره ده

۱۹۹٦/۹/۱۵ پېښور ناصرباغ نوی کمپ

*نشاره خطاکاره څوچې لارې ته سم نه شې -وهي به دې همداسې قرانونه غړونه غړونه

# دبورې هوسۍ اوښکې

ها را روان باران چا ونه لیده
په نیمې لارې کې بلا وخوړ
خو دبه حیران وې ناخبره خلک
چې سر د دښتې غاټول
څنګه راوټوکیدل ؟
څنګه يې وسپړدې پیغلوټې غوټۍ ؟
دایې دچا په مرسته پرانستلې غوټې غوټۍ ؟
دباران لس دانې څیرږه اوغټکې څاڅکي
دغاټول جام ډکوي
دپرخې يو څاڅکی پیغلوټې اوڅربې غوټۍ ته
دراراتلونکې ګل ماشوم ورکوي
خو دبه حیران وې ناخبره خلک
چې سر خويو څاڅکی باران هم ژوندی پاتې نه شو
يو دانه پرخه هم
دشنه آسمان په غلبیل

درنیو ستورو له سوریو راونه چنیده

په لمدو ښنبووچې غوټۍ ته راونه رسیده

په کوم نسیم کې وملګرۍ اسویلي دجبریل ؟

چې یې غوټۍ شنډه پرې نه ښوده غاټول یې ورکړ

داناخبره خلک ګرم نه دي ګومان به کوي

او دابه خود وایي چې:

ــ پردې سپیره دښته ګولیو بارانونه

وریدلو ته پرایښې نه دي

نه دباران نه هم دپرخو څاڅکو

لامده ګامونه پردې دښته لګولي نه دي

دلته خو هرې ګولۍ زرڅاڅکي باران وژلی

دلته خوهرې ګولۍ

بس لړ ترلړه غورځولي سل غاټول دي له ښنبو

نو ناخبره خلک ګرم خو نه دي

خامخا وایي به چې داکوم جادوګر پسرلي

پردې سپیره دښته یرغل راوړی

اوهرې پیغلې بې بارانه غوټۍ

دغاټول غل راوړی

خو ناخبره خلک

په دې خبر دي کنه ؟

هغه گولۍ چې يې زرڅاڅکي د باران ووژل
مخکې له مخکې يې کبلي د بيابان ووژل
د هر کبلي له ځيگر سوې وينې

زرغاټول راوټوکيدل

د هرغاټول په آيينه کې هره بوره هوسۍ
د ځيگر سوي کبلي وينې ويني
او هره بوره هوسۍ زرغاټول په خپلو اوښکو
له وچيدلو په آمان ساتي
ډک د غاټولو بيابان ساتي
پر خپلو اوښکو لوند د هرغاټول گريوان ساتي

۲۲/۹/۱۹۹۶ پېښور ،ناصرباغ نوی کمپ



دي تاندي چيني وچي چيـــــرته تللي چنارونه
شنه غـــــره زمـــــونږ چيني لرلي کلي چنارونه
اوبوکـــي به يي څـــښلي وي دبوري هوســـۍ اوښکي
هوســـۍ غـــوندي له کلي تښـــتيـــدلي چنارونه
بيګادګـــودر پيـــغلي په لمبـــوکـــي لمبيـــدلي
ســـحـــر زمـــونږ زلمي وو ســـوځـــيدلي چنارونه
غچ ،غچ په کي چوپ ،چوپ دی دکوڅنيو چوڼ چوڼکو
راځئ چي غـــچ يـي واخـلـو چـا وژلي چـنـارونـه
شـيـبي دشـاعـرمني مـــي په زړه کـــي زخم کني
راشنه په کـــي ســـروزرو پريمـــينځلي چنارونه
پرون چا دچنار لـه ســـتـــي جـــوره نـغـــارده وه
بيګا مـــي ليـــدل خـــوب کـــي ګـــډيدلي چنارونه
پرغـــاړه داوبو به بيـــا پـه شنه لمانځـــه ودريږي
بـلـبـل پـه اذانـو رابـلـلـي چـنـارونـه
وطن کـــي مـــي دغم نغـــاري چاودنګولي
کـــاروان خـــو پرځـــای پريږده کـــوچيـــدلي چنارونه

۱۳۷۵ سنبله ،ناصرباغ نوی کمپ ،پېښور



درومي ،خو څرگنده نه ده کومه لاربه ونیسي
داسې به په دارشي که دلبچوهار به ونیسي
رابه شي دستورو په لباس کې لکه سپین بازان
سره کُفار به ونیسي او تور کُفار به ونیسي
خدای به یې بیا پاکه کړي دسپین سهار په سپین دسمال
هو منم دلړ بسیبنبه ،دشپې غبار به ونیسي
بېن دمستې مینې به راواخلي دمولا په نوم
لال به ترې ولجه کړي بې اُدې ښامار به ونیسي
زړه لري بې زړه نه دي یو څوک خو به پرې ونماڼخي
گوره یې په نن سباکې ښکلی یار به ونیسي
بیا به مرغلرې دفرعون له رېږې وشکوي
وخت لاس دماشوم موسی دي سور انگار به ونیسي
رابه شي ،په ښو به یې بیا پریوزي چې پخلا یې کړي
سپیني اوبه ،ښې دمرورچنار به ونیسي
رابه شي ،پیدابه شي ،داورک دارمان ستوری مو
خوله به له سپورمۍ واخلي دلړ مدار به ونیسي
راغی ددردونود کاروان سره د بره نه
خدای ته مې امید دی ،دسندرو ښار به ونیسي

۱۹۹۵/۱۲/۱۹



لا تر اوسه يې تنهاکې شته تغمې شته
لکه درد مې زړه کې مېشته ، شته نغمې شته
ليندې کش کړئ دخيالونو غشي ولئ
دغزل دغزالانو لا رمې شته
دانځر گرځنده گله ! چېرته ورک يې ؟
نه دې پانې باد راوړي نه دې ورمې شته
ځان له مينې اړولی نه شم شيخه
چې گلونه شته ،سندرې شته ،اېشمې شته
ديادونو په ځنگل کې تری تم يم
تاته تم يم تنهايي شته زمزمې شته
ديوه خداى دپېژندنې په راز پوى شوم
ستا په سترگو کې يې ډيرې کرشمې شته
مگرڅاڅکې دسندرو پکې توى شي
شته ډېر تش توري او تشې کليمې شته
پرې ورانيږي دوعدې دکانې کرښې
چې دښکلي پر تنکی ژبه پلمې شته

پر گـــــريوان دزره لاســــبـــــري جنون نه شـــو
پرې دپاســـه دتـنيـــاكـــو لا تُـكمـــې شـتـــــه
چې ملې پرانزې قلم يا بـه شــــپـــــيلى شي
دوطن په نيـســـتـــان كـــې مـــې دُرمـــې شـتـــه
ژوندكـــــه يخ شي لـكه تـكه ســـــپـــــينه واوره
ليـــونيـــو لره تېكنيـــې غــرمـــې شـتـــــه
راځــــه دواړه به پـه يوه كـــاروان كـــې ورشـــو
پكې مـــيشت به شـو آشنا تشې خيـمې شـتـه
دښـكـلا دكـــــاروان ســــتـــــرېـه لارويـه
درومـــــه ،درومــــه تاتـه چا وې دمـــې شـتـــــه
پېښور ،ناصرباغ نوى كيمپ /۱۹۹۶ستمبر ۵ د ۱۳۷۵دعقرب ۱۵

# دخدای دغزل اوریدونکی

اې تاته وایم
له ټولو ښکلیه
غم دې یوداسې
مهین غزل دی
چې خدای لیکلی
په کې جاري یې
ابد ازل دی
په دې غزل کې
دسروغاټولو
دښتې راټولې
په کې روان دي
سرکشه غرونه
درې غونډۍ او
باغې سیندونه
غم دې یوداسې
مهین غزل دی
چې یې هر توری
مچې دشاتو
هره قافیه یې

دګلو پانېه
او ملکه يې
په خپله ته يې
غم دې يو داسې
مهين غزل دی
چې خدای په خپله
زما دښکلې
زرګي پرپانېه
زما په سپينو
او رنېو اوښکو
ددرد په ښکلې
قلم ليکلی
للو للو يې
په زمزمو کې
خوب دځنګل دی
غم دې يو داسې
مهين غزل دی
چې خدای په خپله
سندريز کړی
چې پرښتې يې
په ګډه وايي
ځمکه يې اوري

آسمان يې اوري
غرونه يې اوري
سپوږمۍ او ستوري
ورته ګډيږي
هر څوک يې اوري
خو د درد کيف يې
څکلی نه دی
د ذوق په ژبو
يوه اوريدونکي
ترې کيف اخيستی
چې هغه څوک دی؟!
صبر چې نوم يې
لږ را په ياد کړم!
صبر چې نوم يې
لږ را په ياد کړم!

پېښور، ۱۹۹۶



پري دغـــزل راغلـه راځـي گـــوري دروازې
پرانســـتــــې دغـــزل ورته هر توري دروازې
دشــــپـــې په پټـــه لمر يې وديدن ته دی روان
سپـوږمـی ورته پرانستـې دسـپين سنتوري دروازې
په بند ديوه ښکلي کــې يم دومـره ډير خـوشـحـال
ترې تښـتم نه کـه شتـــه هم په هر لوري دروازې
خـبـر نه يم دزړه کــور ته په غـــلا راغلي څــوک؟
زنځــيـر يې په شـرنگا دی غلې ښـوري دروازې
نظام دليــونی مــينې راځي خــوب مــې ليـده
مــجنون به دليـــلا دکـــلا ژغـــوري دروازې
روان دی دکـــاروان نظر دتورو ســـترگـــو چم ته
په نه بيـــه دســـپـــينو اوښکو پلوري دروازې

پېښور ،ناصرباغ نوی کمپ ۱۹۹۶/۹/۲۳



دښکلیو خدایه! ماخه بل شان عبادت کړی دی
د مینې لمونځ مې داشنا په امامت کړی دی
هو دامنم چې له بدرنګو مې نفرت کړی دی
خو داهم ومنه چې ما هم محبت کړی دی
سپینه خبره کوم، تپه تور د زده مې نه ده
ښکلو کیو سترګو ته مې تل د زړګي ست کړی دی
په خپل کابل کې مې پردیو کړې نغمې په زندی
ماهم باګرام ته په غزل پسې هجرت کړی دی
دابه منې کنه ددیو د تیرې توري لاندې
د بندیوانو ښاپیریو مې صفت کړی دی
زړه کې ورځې خو په خوله دا اعتراف کله کوي
چې دې کاروان هم په غزل کې قیامت کړی دی

/ ۱۳۷۵ عقرب ۲۷ / پېښور، ناصرباغ نوی کمپ



پرون تړون دخور دیدن راسره یار تړلی
دژوند نیلی مې غړوندي پوري ددار تړلی
لکه خبره مې په زړه کې یې هیریږي مې نه
تا مې دخیال په تنکی ګوته پوري تار تړلی
یاره ښکلا به دي زوال شي که تندی مې شو تپيټ
تا مې پر سر دپښتني مینې دستار تړلی
کله که ستا داسندریزي ګوتي وتوسیدي
راځه زړګی مې په تارونو دستار تړلی
که دخالونو دي کمی وي خال په نیمه موسکا
راشه کاروان مې دخپل زړه دوینو بار تړلی



مالي باد وړی دی خبر کله دور کو رائي
دبلبل ساندې په کفن کې دغونچکو رائي
آسمان په وینو لامبي ښکاري غشو کار کړی دی
چې په هوا کې تش سیلونه دښکو رائي
پښتونه هاله به راویښ شې چې دې کورشي کنډر
تکې رالویږي ستا پر غرونو آسمانڅکو رائي
دشهید تپ دې لوټوي پرتند وږدې خالونه
بدنامې ډمې په لباس کې دملکو رائي
دغم لیوانو مې دزړه په ورشو برید کړی دی
داوښکو وري دښو شپول ته په تر پکو رائي
زما دکلي ماشوم توب خو لا پخوا شهید دی
بیرته یې ستون کړئ بنجاره که دنانځکو رائي
تیغ د ترخې خندا پرې بږدې دو یښتا به داغونه
پرو چو شوندو چې خوبونه دمچکو رائي



یوه زرین ښامار مې سور دزړګي لال وړی دی
زمونږ له شپونه یې دستوریو دک دسمال وړی دی
هغه دزانو له کتاره راوتلي غشي
دکلیوالي شین خالی دزنې خال وړی دی
بس له قاتلو ورځو شپو به درته څه ووایم
برګو پړانګانو رانه بیا دژوند غزال وړی دی
دمینې لمونځ به مونږ دچا په اذانونو کوو ؟
خدایه! کافرې زمانې رانه بلال وړی دی
اسم آعظم پسې دسپینو ستورو غوټې سپړم
ځم جادوګرو ښاپیریو رانه خیال وړی دی
راغځیدلی مومری ته لاس ،په څه یې غوڅ کړو ؟
چارانه توره دبابا او چایې ډال وړی دی
راپولومه هغه پانې پانې خوب دکاروان
هیڅ خبر نه یم چې په کوم لوري شمال وړی دی

۱۳۷۵-عقرب--پینبور ،ناصرباغ نوی کمپ



شرنګيري مې په روح کې درباب په ځپر يوځوک
مايوسي دسندرو ددرياب په ځپر يوځوک
سيلونه دکوترو رانه لرې لرې ګرځي
پريام مې دزړه ناست دی دعقاب په ځپر يوځوک
په لاس کې به له ژامې دښامارو واخلي لال
راشين به شي دځانګې دګلاب په ځپر يوځوک
دزړونو مرغلرې دکينو له زنګه ساتئ
پيدا به نه کړئ بيا کله دآب په ځپر يوځوک
پاچا دنوش داروقافلې نن راوليږلې
رستم پرون وژلی دسهراب په ځپر يوځوک
بيا نه راځي ماشوم غونډې يې ځکه نازوم
خدای مه کړه مرورشي دشباب په ځپر يوځوک
له تندې نه يې ډک کړل دغاتولو کنډولونه
روان په بيابان کې دسراب په ځپر يوځوک
خبروته به مستې دسندرو اوبه ورکړي
راځي به دنغمو دانقلاب په ځپر يوځوک
کاروان يې درستې شپه په ترنم ترنم وايم
دسوو غزلونو دکتاب په ځپر يوځوک

پېښور، ۱۶/۱۱/۱۹۹۵

# پیغمبرې اوښکې

ستا د دووتوروا وملالو سترګو

ددوو همځولو پیغمبرو ،تکې سپینې اوښکې

زما دښکلي او رنګین تخیل

رنګین ښکو طلایي مچیو وځبیښلې

اوس مې دروح کندو له شاتو ډک دی

او س مې دشعر جام جم له کایناتو ډک دی

اوس دې شاعر کړمه شاعره حسنه

او س ګلغزلې دګلونو په لغاتو لیکم

ستا لاس نیوي راته ګلتوري مریدان جوړ کړي

زما حسینه ګلورینه پیره

دومره شعرونه خو زه ستا په کراماتو لیکم

۱۹۹۳دسمبر۲۲---۱۳۷۲دجدي ۲ دلیکوالو ټولنه «وفا» پېښور



جام خالي دی ساقي نه شته، بس اورونه خو به څښو
دوړو ستورو په جام کې، سحرونه خو به څښو

دلقمان پته ده ورکه، او دردونه هم خمار دي
غلي غلي راته وايي، پرهرونه خو به څښو

عشق مې دنگ لکه دغره شو، ته دغره پر سر آسمان شوې
ستا له لاسه راپريوتي، تندرونه خو به څښو

ښکلي خپلو کې جرگه شول، وې خالونه مو تت شوي
چې تازه مو شي خالونه، ځيگرونه خو به څښو

دژوندون له تږې دښتې، جل وهلی کاروان راغلم
ستا دمستو مستو سترگو، گودرونه خو به څښو

۱۹۹۵/۱۱/۱۰ پیښور



پیـــغـــمـــبـــر لـه پرښـــتـــې راواخلي راز
خـــومطرب لـه ســـریندې راواخلي راز
شـومـه دم شـو شـپـه پخـه شوه ،لکه ستوری
ویښ شـــاعـــر لـه توري شـــپـــې راواخلي راز
ددنیـــا ټولي نغـــمـــې به یې شي وینځـــې
کـه شـپـــونکی مـــو لـه ټپـــې راواخلي راز
لاروی دخـــیـــال مـــې بینا وریـــښـــې ســـتـــون کړ
چې لـه تـلـلـې قـــافـلـې راواخـلـي راز
مـــجنون ټول ددښت غـــا ټول لیلی لیلی کـړي
دلـــیـــلـــی لـــه دروازې راواخـــلـــي راز
لیـــوني چې له خـــپل ځـــانه پســـې ووځي
داســـــرارو لـــه پـــردې راواخـــلـــي راز
تـصـــور مـــې دهـنـدارو په لبـــاس کـــې
ښـــاپیـــری شی نه ســـینې راواخلي راز

زاهدان يې د محراب په پښو کې ګوري
خو رندان له میکدې راواخلي راز

مړه قومونه پرې تول عمر ژوندي پایي
د شهید له جنازې راواخلي راز

له چا ورک شي په رڼو سترګو دیار کې
څوک دستور له بوخښې راواخلي راز

د کاروان غزل به خوړ لکه بوسه وي
چې دیار د سپینې خولې راواخلي راز

۱۹۹۶/۱۲/۱۳ پېښور، ناصرباغ نوی کمپ



دايې راپېښ دي له وينوس نه مـــرمـــرين لاســـونه
او کـــه ورکـــړي دي د تورې شــپـــې پروين لاســونه
لکه دعـــا ده لوړه دنـګه آن تر عـــرشـــه رسي
ځي وريســـې مـــې وزر مـــاتي د آمـــين لاســـونه
زمـــادزړه آزادشـــهـــبـــاز يې په هنر ونيـــوه
لکه جوړې سپـينې کـوترې راغلل سپـين لاسونه
مـــاته به ګل دښـــا پيـــرينو له باغـــونو راوړي
کله له قـــاف نه تاووي کله له چين لاســـونه
دزړه کـــتـــاب مـــې په ګـــې تاوکـــړه تلاوت يې کـــوه
تاته خوښـــکلي خداى درکړي دي وريښمين لاسونه

۳۱/۱۲/۱۹۹٦ پيښور



مسرې دغزل ځانګې دغوټیو په شان توري
راځي ورته دشاتو دمچيو په شان توري
په خیال کې په لاس راشي دښکلا دمضمون لپچې
ماتيرې رانه ستا دشنو بنګړيو په شان توري
ډک پاتې دي تيونه دغزل دغزالانو
په غشيو لګيدلي دکبليو په شان توري
چې زړه ته مې څوک واچوي دکاڼي غوندې غوټې
له غيبه په کې جوړ شي دغميو په شان توري
راوينې چې شي دحسن چين ماچين به راته نيسي
ويده لرم دزړو ښاپيريو په شان توري
ځوندې دپښتنې ليلى کميس ته جوړومه
پېيمه دلونګو دمريو په شان توري
کاروانه چې غزل پښتونوي پت به يې پالي
پرده کوي دپېغلو جينکيو په شان توري



باروو په لمر دسپین سهار اوښان

تور ، تورغرونه مو کتار اوښان

پې وروړمه پنډې، پنډې ژیړگلونه

په اغزو کې ځروم دیار اوښان

اووه ځایه به اووه درته حلال کړم

ښکلیه وایه که دې شول په کار اوښان

درنها دپاړوگرلمنه نیسم

توروي مې دتیارو ښامار اوښان

تریو زیری قافلې دمیو راغلې

راروان مې دي خمار ، خمار اوښان

بلوم دسر ښیښه کې دحق شمع

غړوندي پوړې تړم ددار اوښان

بس دي بس دي تابو تونه دومره بس دي
بارومه درباب په تار اوښان
رارسيږي به دشنو طوطيانو چم ته
پر شکرو پر نباتو بار اوښان
له جرس ځني يې شور دټپو خيژي
ويني خوب کې دسندرو ښار اوښان
ځاى په ځاى په کې ځوندي وتره ياره
چې کاروان کړم په وريښمين مهار اوښان

نهمه روژه ناصرباغ نوى كمپ ،پيښور ۱۳۷۵



شیطان مې لمسوي چې له روزګاره واخله لاس
راتاويې کړه له ياره له بل کاره واخله لاس
وريښمين دځنو کفر ،نوراني دمخ اسلام
داخپل کړه له مسلم او له کفاره واخله لاس
راپريوځه چې ذرې دې کړم ديار دغاړې هار
اې اې سرکشه ستوريه له مداره واخله لاس
ددرد جامې په تن لرې جانان په کې وطن
طبيبه خير يوسې له پرهاره واخله لاس
دزړه دګل شراب مې پکې لږ راوړې دي
داوښکو له ښيښو نه مې غباره واخله لاس
چې هيڅ په کې تيت نه شي سرترداره رسوه
له ستو ثوابونو ګنهګاره واخله لاس
پردنګو دنګو نجونو دی کاروانه پام په کار
بس بس مره له منځې له چناره واخله لاس

لسمه روژه ،پېښور ،ناصرباغ نوی کمپ ۱۳۷۵



بدرنګ زمـونږ دښکليـو ښـيـښـو ښـار مـا توي

تصـويـر پـه کـې زمـا دښکلي يار مـا تـوي

راځئ چې دا تـور کـانـي پـه هـندارو واړوو

هنداري بـه مــو تندي دديدار مـا تـوي

ياخرپ دسپيتې خولې د ی اويا خرپ دسپينې تورې

يا باد چې پـه خـرپ ښـانـګې دچنار مـا توي

داسـرمـې دجـانان غـمـونو دومـره دی دروند کـړی

پـه يوه تـالـی بـه وګـوری چې دار مـا تـوي

شيـرين جنون اخستي فـرهادي تيشي پـه لاس کـې

دډنګو دنګو غـرونو پر سـر لار مـا توي

دې زړه تـه مـې يو ښکلی غـوندې غل راغلی دی

پـه چل چل زنځـيـرونـه دخـمـار مـا توي

مـوسکا يې کـړه حـيـا پـه اننګـيـو کـې راتوله

زيړی پرې دنرګس غـوندې بيـمـار مـا توي

راځئ کـانـې ترې واخلو او قلم پرې وويشـو

رباب ولې پـه کـانـو اوسـتـار مـا توي

کـاروان لـرې دزړه پـه نـوم وړوکـی بلبلک

پنجـرې بـه داوړوکـی سندرمـار مـا توي

۱۹۹۷/۱/۱



چې ورته خــولـې شـــوې داصـــيلو مـــرغلرواوبه
خـــپلو خـــبـــرو ته دې ورکـــړې دسندرو اوبه
ستـا دتـصـوير تنكيـو پښـو ته شيـشـې مـه شـه لشـې
په كـــانو چيـــرې مـــاتې مــــه شـــه دجـــوهرو اوبه
زمـــا دزړه دمـــينې زور پاس په لمـــو كـــې گـــوره
په بـره خــــيــــــــــــژې آشـنـا تـل دزوروروا وبـه
خــــدايه!باران دمـــــينـې راولـه پروچو للمـــــو
غـــواړي گـــلان لكـه دتږو مــــســـــا پرو اوبه
گـودرې شـاړې منگـي مـات دي په كـې څـاڅكى نه شـتـه
ســـتـــادلاســـونو دجـــوړه ســـپـينو كـــوترو اوبه
پرگلو څـــاڅي كـــوم دمـــينې پيـــغـــمـــبـــر ژړلي؟
دشـــعـــر دشـــاتو دمـــچـــيـــو له وزرو اوبه
كله چې ليكي خـــپل صنم ته صـــوفـــيـــانه غـــزله
قـلـم تـه واچـوي كـــــاروان دنيـلوفــــــرو اوبـه

۱۹۹۵/۳/۱۱



شپه چې نيمه شي خوږه شي، شين بنكي طوطي راشي
راته وو ايي سندرې، گټ كټ شين شي په خندا شي
شي شكرې او نباتې، راته وايي كمې زياتې
چې بنې يې نه شي ماتې، گله كله په هواشي
په وره خوله وايي ستري، افساني دنژدې لرې
ته الونې مرغلرې، په صفت مې د آشنا شي
وايي مينه ده بنكلا ده، دشاعر مسته دنيا ده
ديوه لوی ملنگ دعا ده، رانه پټه په رڼاشي
هغه پيره دسندرو، شوه فقيره دسندرو
ده آميره دسندرو، بس كاروان يې چې گداشي

۱۹۹۷/۲/۲۸ پېښور، ناصرباغ نوی كمپ



ښکلې ډېر له ګـــورد جنتي د شــــاعـــر کـــوردی
هغـــه کــورچې پښــوکــې يې چمن د زړ ګي خـــور دی
هلتـــــه هم منمـــــه چې به وراوي وي د حـــــورو
دلتـــــه د خـــيـــــالونو د ملـکې تنګ تـکوردی
هلتــــه شــرابونه دي ،شــيــدې اوشــات او دلتـــه بس
توره شـپـــه شــاعـــر اوشــعـــر ،اوشـــوردی اوشـــوردی
ډېرې مـــې رنـاوې د دوی ښـــښـلې په اوبو کـــې دي
نن د ســپــينو ســتـورو د ســپـــوږمـــۍ راباندې پوردی
شـــوخ جنتي شـــونډې د نرحـــوري دي ښـــبـــيـــښلې
تــاو يې دلتـــــه راغـی دغـــــاتول په لمن توردی
هلتـــه يې ديدار لره تر ســــره راغلې ســتـــرګـــې
دلتـــه په سندروکـــې کـــاروان لره ســــمـــســـور دی

۲۸/۲/۱۹۹۷ پېښور ناصر باغ نوی کمپ



بت جــوړوي په خــپل هنر تنده ازر مــــاتوي
ابـن ازر تـبـــــر په لاس تـرينـه وژر مـــــاتوي
پرشــونډوسـرويې شـوه خنداراخـوره تاب نه لرم
خلک روژې په لمر خـــاتـه کــې داخـتــر مـــاتوي
لـه مــړوندونو يې رانيــسم نه چې خـون يې واخلي
وعــدې، دسـرو اوشنو بنګړو په شـان دلبـر مـاتوي
خـدايه راتيــريې پردرزونو کــړه لاسـونـه دعــشق
ســتـوري مــــاتيـبري لـه مــداره وځي لمر مـــاتوي
پرې غــوړوم بـه اوس دخـيــــال دپرښـتــــو وزرې
ږلى وربرې رانـه ګل دپيـــغــمـبــر مـــاتوي
کـــاروانه غـــشي مـــاتوه کــړې ليندې ســمـــوه
شـهـــبـــاز يې ويشـتـى اوس بنکې دکــوتر مـــاتوي

۱۹۹۷/۲/۲۸ پېښور ناصرباغ نوى کمپ



بیا محشر شو بیا شمر ویشتلي راغلل
شهیدان لکه لاله داغلي راغلل
زړه مې یو بدرنګ هم نه شي ځایولی
په کې ځای شول که د ښکلیو کلي راغلل
د تورکانې سپینې اوښکې یې په تن وې
انځورونه په رڼا مینځلي راغلل
نن یې سرته پستې ځنې کړه سر ویږدی
د پرون پر اغزن دار ختلي راغلل
په درشل دې بلوې ډېوې دوینو
په خنجر یې کتارو ژوبلي راغلل
صدقه دې کړه د شنو بنګړیو لبچې
ستا د مینې په زنځیر تړلي راغلل
ستا لېمه هم دمه ځای د کاروان بویه
دلته ډیر له خپله ځانه تللي راغلل

پېښور، ۱۸ جولای ۱۹۹۵



*مینې نغمه ګرې لړېږې جوړ په زړه پرهار کا
*شیخ چې د تسبو غړلی تار درباب تار کا

بیا دې شه د مورشیدې سور لال تاج د شاهیو
غوځ اووه سرونه دوختونو له ښامار کا

بیا به دژوند خوب د یار دلپچو پر سر وکړې
لړ دې سر للو للو په لپچو کې ددار کا

نن مې په خمار کې ساقي جان ته غوسه وکړه:
ـ خله بل ته جام اړوې پام زما په وار کا

پنډې په ګودر کې شه کوترو غوندې نجونې
لمر چې لکه باز وزرې تیتې پر چنار کا

ستا افغان ښایست به د تېږو په ژبه ستایم
جوړه پلازمېنه مې دزړه پر کندهار کا

څله ښکلوې راباندې پښې دزیارتونو؟
خدای خودې په خامه بهانه راسره یار کا

خلکو په ښکنځلو باندې تول توري جوته کړل
لړ خو یې کاروانه په غزل کې سندرمار کا

پېښور، ۸/۱۲/۱۹۹۵

*عشق مطرب زاده ی بر ساز وتقوی زورکرد
*دانه ءتسبیح رازاهد خر تنبورکرد «حضرت بیدل»

# زېړ ګلاب او سور ګلاب

ته کاروان د سرو او زېړو
ګلابونو يې که نه يې؟!
ته کيږدۍ زما د زړه د
طنابونو يې که نه يې؟!

ما و، زړه تاله در کړی
خو تا يو ګلاب رانه کړ
ته خو سم د رحمن قال وې
تا خو سم ځواب رانه کړ

ايله دومره دې بس ووې:
ـــ ډېر ګلان به در ته راوړم
ګلان څه چې د ګلابو
يو کاروان به در ته راوړم

تاوې دومره صبر وکړه
چې دادواړه ګلاب ګل شي
یو پښتون سپرلی به راشي
تېر به داخزان مغل شي

ما و ،زړه تاله درکړی
هغه زړه دې چېرته پرېښود ؟
که غاټول دې ترینه جوړ کړ !
داغ دې کوم ځای ورله کېښود ؟

دکاکاصیب له سیمې
دکستېر ګلونه راوړه
هغه زېړ ګلاب چې ګل شي
ماله ډېر ګلونه راوړه

هغه زېړ ګلاب به ګل شي
بوراګان به ورله راشي
یو به روح زما په کې وي
ترېنه تاو به په ګډا شي

هغه سور گلاب چې گل شي

هغه پاس په څنو کېږده

چې زما روح يې اغوستی

ها بورا يې غېږکې پرېږده

ته کاروان دسرواوزېړو

گلابونو يې که نه يې ؟!

ته کېږدې زما دزړه د

ظنابونو يې که نه يې ؟!

له کاکاصيب سره نژدې سيمه،/۱۹۹٦داپريل٤

# هغه دژوند په شانې دنګه جینۍ

زمونږ د کلي هغه دنګه جینۍ
هغه په سپین کې غنم رنګه جینۍ
اوس یې هاسور سالو لمبه نه وهي
اوس په پستو ګوتو چمبه نه وهي
هاچې سندرې یې په لاس رانیوې
دبام کوترې یې په لاس رانیوې
اوس یې دتهول کلي بامونه وران دي
سپین دکوترو سلامونه وران دي
خرو اوبو یې سور پېزوان وړی دی
ژېړ مازدیګر یې تُرابان وړی دی
چایې په غشو کشمالی وژلي
چاترې یادونه دلالي وژلي
سپېرو سیلیو ترېنه شال وړی دی
دڅرو څوکو یې شین خال وړی دی

نه يې ځونډي نه يې بنګړي پاتې دي
بس تش کودي يې د ګړي پاتې دي
تش له بنګړويې مړوندونه پاتې
ډک يې دورورکمربندونه پاتې
غم ،دوطن دغره دلمنځې په څېر
زړه کې يې وغځيد دګونځې په څېر
په هديرو ګرځي ملنګه جينۍ
هغه دژوند په شانې دنګه جينۍ
لکه غوټۍ دغاټول ټولې پټې
په سره کفن کې ترې همځولې پټې
ټولو غمونو ته يې دا پرايښې
دعرش پر لاره يې دعا پرايښې
زړه يې په ټولو پسې ټول داغ داغ
دژوند ددښتې داغاټول داغ داغ
لکه رنځوره ژېړه پانه جينۍ
ها غنمرنګه هغه سکانه جينۍ
اوس په اختر دجونو پېنډې نه شته
اوس دګودر دجونو پېنډې نه شتبه

که بندي کړي په ما پسن حسینې دروازې

مولا مې زره کې پرانستې دمینې دروازې

کوڅه کې یې زما پرتندي کاني ګډیدل

جانان مې په سروو ینو کړې رنګینې دروازې

پرې راولـه اروا تـه کاروانونه دموسکا

دوې اوښکې مې دوو سترګو کې دوې سپینې دروازې

سبا به مې روښانه کړي کلا د توروشپو

دلمر پرنیلي بار راغلي زرینې دروازې

زما دچم ګلونه یې بې دریغه وریبل

دخپل چم یې پرې ښکلې کړې ګلچینې دروازې

مومن زما دمینې یې کړو ځکه بت پرست

دحسن ښار کې لکې دي بې دینې دروازې

سرونه دغرور یې دي ترپښو لاندې پراته

مغرورته غرغرې شولې مسکینې دروازې

ده پټه درازونو ښاپیرۍ پکې دیره

پرانزمه دغرونو دېرینې دروازې

سرې پرې کله کله دکعبې ګومان کوي

وې ډیرې مبارکې ځینې ځینې دروازې

داچایې پرزنځیر دي کیمیاګر لاسونه تېر؟

کاروانه دسروزروشوې مسینې دروازې

پېښور، ناصرباغ نوی کمپ ۱۹۹۶/۲/۹

هغــــه مـلاله اوخـــــماره جـينى

ها چمبـــه مــاره تپــه مــاره جـيني

تولې تپـــــې يې اوس تپې تپې دي

غـــرونه تپـــې يې او س تپې تپې دي

ســــتونى يې بس دياقـــربان هديره

زړه يې دهـر يوه ارمــــــان هـديـره

په نيمـو شپـو ليـونى چيـغـه وكړي

لكه ويشتلې هوسـى چيـغـه وكړي

ويښـه دنيـا وي ځان په خـوب واچوي

پرده ددې پرليـــــونتـــوب واچوي

ها داوبـو غــونډې بې رنګه جــينى

هغـــه په مــينه كـــې ملنګه جـينى

ستـوري تسبـې كړي پرې مـولا يادوي

نوم دوطن مـــې په بيـا بيـــا يادوي

ســـتـرګـــې په لوري دمــولا واړوي

هســـې نه پرمـخــې دنيــا واړوي

* ۱۱مارچ ۱۹۹۷ناصرباغ نوى كمپ پيښور



لاس مې ډک دی له تنکو، لاس دې ډک په مرغلرو
وخت له مخې تمبو مه، د دردونو په سندرو

ستا د څنو وریښمین کښت دی، زما ژوند داغزو دښت دی
دبروځو مې بالښت دی، او څپلۍ مې دمنزرو

راپسې واړه زاړه کړه، ټول بانه راته کاړه کړه
یو لپه راته خواږه کړه، چې ورگډشم په لښکرو

*ده په وینو لته پته، د ستار په تارمې گوته
ما دنیا ته ورکړه لته، سبل کې لاړم دکوترو

په کاروان کې ځم دژنو، یو څو تاره را دځنو
ځانگې ماتې دکړکنو، دمانو دگورگورو

پېښور، ۱۹۹۶/ مارچ ۱۶ *د پښتو غزل د خواږه سندرمار گران ملگري مومند دمه ځای ته تللی وم. دیوه ځوان ستار غږوونکې په غیږکې یو زړین ستار ایښی واو خواږه نغمه یې په کې اړوله. ستار او دی دواړه ښکلي بریښیدل. لکه دی چې ستار وي او ستار دی وي. دستار نغمه یې غلې کړه او هغې زخمي گوتې یې چې دستار تار زخمي کړې وه ماته د غزل پوړ تنی بیت راکړ.



زمانه وږې زمرې پنجې یې سرې دي
له چمبو یې دهوسۍ خرمنې پرې دي
دسپېرې سیلۍ جارو دباد په لاس کې
پرې جارو یې دشپېلۍ له غبږ درې دي
دډرخو دلاس ځونډې یې شو کولې
په رباب کې یې وژلې انترې دي
دکابل پرښا پېریو مې زړه سوځې
ته به وایې نښتې ځلې سنترې دي
کناري رانه جانانه دزړه مه وړه
شي به ورانې پرې ودانې پنجرې دي
دکاروان په لاس کې شعر دی او شراب دي
دشیخانو په لاسونو کې دُرې دي

پېښور، ناصرباغ نوی کمپ، وروستۍ شپه / ۱۹۹۶ مارچ ۲۱

اهداء: دافغانستان لوی درامه لیکونکي منان ملګري ته!

# اواره ملګریه څه شوې؟!

لپې لپې اوښکې راوره، دتاک پاڼې پاڼې وچې
اواره ملګریه څه شوې؟ دلغمان ممانې وچې
ننګرهار ته به چې راورل، ښاپیرو دچین ګلونه
دنرګسو زیړ ګلونه، دنارنجو سپین ګلونه
ښاپیرۍ نن ترۍ تمې، افسانې ورپسې ګوره
لړدې سر پر ځنګون کیږده، زمانې ورپسې ګوره
چې دښاتو دمچیو، په ځانګونو کې به ګل و
په شملو کې به غنچې وې، اوربلونو کې به ګل و
دوطن اوربل دې جړ دی، دوطن شمله دې سوې
ګل غونډۍ دې لولپه دده، هغه شنه مملې دې سوې

چې زلمي مطرب به تاو کړل، دماشوم رباب غوړونه
ورته غرونو به ګدا کړه، ورته څک دریاب غوړونه
ستا په کلي او په چم کې، داقصې د مرغۍ پې دي
راته وایه چاموندلې، په سراب کې هم سیپۍ دي؟
دبامیان ژوندی بودا دې، سیلانیانو پسې مړدی
جنازه دباغ روانه، په طوطیانو پسې مړ دی
سپین سبا دې چا په وینو، داسې سور لکه منصور کړ
دبخدي هر یو دیوال دې، رابعې په وینو سور کړ
سخي جان دې مروردی، لیوني ملنګان نه شته
چې جنډې یې ځګولې، ببر سري یاران نه شته
ګندهارا دې تار په تار ده، قندهار دې وینې وینې
په انګورو کې دې زهر، هر انار دې وینې وینې
په تبرونو یې غوځ غوځ دی، دکنړ تندی دې ګونځې
میخانې عربو جوړې، دپکتیا له هرې لمنځې
په رنځو لړلې اوښکې، دوطن پیغلې دې ژاړي
دپاریس برېنډې پیغلې، له پنجشیر نه غمې غواړي
ستا دکلیو ماشومانې، له نانځکو نه ویرېږي
دغانړولو سرې غوټۍ دې، له لولکو نه ویرېږي

دزلمیـــو لـه قـــامـــوس دې ،دقلـم توری باد وړی
مـــردکــیـــو لـه هرات نـه ،هر یو رنـګ دبهـــزاد وړی
«دایاز ګـرګـوتي ښـنـې ،ګـورکـې وخـوړې چینجیـو
دمـحـمـود خـمـار مـات شوی،دمـرګي پـه درنو مـیـو»
لـکـه اوښـکـه د خــپـل ســوي،زړه لـه اوره مــهــاجــره
د*عــیـاش نیکه پـه ښـارکـې ،لـه خپـل کـوره مـهـاجـره
شـپـه ده لمر پـه ولجـه راوړه ،چې زمـونږ دسـحـرتـاج شي
دصــابر پـه لاس بـه وړی ،ورک احــمــد تـه دسـر تـاج شي
*لـه عیاش نیکـه نـه مراد تیمورشاه دی چې پېښور يې دژمي پلازمېنه و

۱۹۹۷داپریل ۷پېښور

## ... خدای ښامار بیرته شاعر کړ

هو منکر نه یمه په خیال کې مې کړلي اوریبلي دي ډېر
چې دلوږ غره پر دنګې څوکې باندې سر کیږدمه لمر شمه زه
چې کاینات وولم دوړانګو په زرینو ژوند بخښونکو غشو
کله مې زړه کې دارمان دځړیکو څانګې داسې وغځیږي
چې دنښترو شین ځنګل شم له سیلیو سره غیږ ونیسم
سپوږمۍ ته وکړمه سلام له تروږمیو سره غیږ ونیسم
کله بیا وایمه چې کاشکې دسندرو سمندر شمه زه
دمست ښامار په شان له ګردې نړۍ تاو شمه راتاو شمه زه
تېرې ارواوې کړم خړوبې مینه مینه شم نیاو شمه زه
منم چې نه یې دنښترو شین ځنګل او نه یې لمر کړمه زه
منم چې نه یې دخوږو مستو سندرو سمندر کړمه زه
شاعر سړی یمه ماشوم شمه لوی خدای راپورې ټوکې کوي
نن یې پخلا کړمه موسکی یې کړم سبا یې مرور کړمه زه
شاعر سړی یم خدای مې پیژني په ځان پسې سر نه ګرځوم
دخیال هوسۍ په غشي ولم په کمان پسې سر نه ګرځوم
چې دایمان په میو مست شم په ګومان پسې سر نه ګرځوم
دور کې لارې لاروی شم په کاروان پسې سر نه ګرځوم

خو نن مې زړه د غه دخدای دښایستونو اورنګونو غوټه
خدای زده چې څنګه شوه بدله دښامار پر زهرجنې هګۍ
داور جنډه شومه ترې پورته شوم له ژبې مې لمبې وریږي
سرکش ښامار شوم هسکه غاړه ورم اوده نه لرم دم نه لرم
د پېښور د پولیسانو دستم په وړاندې زغم نه لرم
غواړم چې ټولو ته ټک ورکړم چې ایرې یې تر ګنګا یوسي باد
نرګس پلورونکي ماشومان ترې خلاصومه اواره دهیواد
په زړه مې لاس داوښکو ،خدای تیرکړ او بیرته په شاعر بدل شوم
دخپل عیاش نیکه په ښار کې پر بې کوره مهاجر بدل شوم
د پېښور صدر بازارکې تر پښو لاندې دي نرګس دننګرار
دنري مار په خبر تغمه پرته په ملاکې دکابل دماشوم
د پېښور دیوه پولیس په لاس کې سره لښته په وینو وینم
۱۹۹۷ داپریل ٤ پېښور

# زکـــات

زما دلرکلي شاعرې ګلې!
سلام علیکم،له سلام نه وروسته
ستا داروا په مناروکې ناسته
ستادسندرو ښاپیرۍ څنګه ده؟
اسم آعظم خویې هیر شوی نه دی؟!
داځه موده کیږي چې نه ښکاري
زما له خوا نه یې پرسترګو ښکل کړه
چې خوب یې وتښتي اوده ښکاري
زه یې په شاوخوا کې وینمه بدرنګه دیوان
ګومان ښه نه دی خوګومان کومه غله ښکاري
لږ یې وښوروه ویښه یې کړه
،نه چې دیوان یې له غچې ګوتې ،
نګین دسلیمان یوسي
نه چې ابلیس ترې نه سندرې دیزدان یوسي
خدای خودې نه کوي که داسي وشول:
چې ستاهمزولې ښاپیرۍ ،

## ستا داروا له منارونه ترابان يوسي

زه به دبر کلي بلبلو ته سندرې بياله کومه راوړم؟
زما دلر کلي شاعرې گلې!
زما دکلي دآسمان دستوروسترگې،
کړې باروتو په رنجو تورې

قصې دې نورې نورې
اوس چې دستورو له ژړاندو سترگو
داد باروتو په رنجو لړلي
داوبنکو پرخه لکه زهر څاڅي
زما دکلي دهر گل پرشونډو
تېرې خندا وژني
چې پرگلونو وي مين هغه بوراوژني
دبلبلانو په مرۍ کې دغزل الفبا وژني
زماشاعرې گلې!
زمادکلي له بلبلو نه غزل هير دي
ته دخپل روح په مناروکې ناستې
خپلې همزولې ښاپيرۍ ته وايه
چې په زکات کې غزلتورې راکړي

۲۵ / ۱۱ / ۱۳۷٤ پېښور .ناصرباغ نوی کمپ

# سروش ته!

دديدن زيړوکي لمر دي ،رنګ په شان دګلاب راوړ
رستم حسن دي په غيرکې ،شهيد شوی سهراب راوړ
ستاد سترګو په باګرام کې ،دکابل زخمي رنګونه؟
کنه دپاکو پيغلو کلی ،داورونو درياب راوړ؟
دموسکا دسمال کې نغښتی ،دروح تاخ مې پرې رنګين دی
دسندرو له يزدان دې ،دسندرو کتاب راوړ
دنغمو دښاپيريو ،پښې په وينو تکې سرې شوې
عشق زما دزړه رباب ته ،تيره غشی مضراب راوړ
دکاروان دشعر سروشه ،شرابي شعرونه راوړه
لرداصل جامې ورکړه ،ماتصوير دسراب راوړ

پېښور ،دآزادافغانستان دليکوالوټولنه،۱۹۹۳دنوامبر۱۳

# ســـــت

کله چې ومینځې پراوښکو یاندې لار دنظر
دنظر گردهم دبنو په جارو کاندې جارو
او ښایسته میلمه ته ست وکړې دمینې په نوم
پرمخ یې پرانیزې دزړه دروازې
چې دی دې ست پرځمکه واچوي په بله لاړشي
پام کوه پام خودداره اوسه چې فریاد ونه کړې
پرخپل تندې باندې گوزار لکه فرهاد ونه کړې
مغرورملنگ شه په ښاغلې انداز څنډ وهه ځولۍ دزړگې
خواره واره کړه داغ ،تناکې او پولۍ دزړگې
گلاب ته رنگ ورکړه نرگس ته انتظار په زکات
پرسپیرو دښتو باندې ویشه لاله زار په زکات
پام کوه پام کوه زړه مه بایله گټلې دې ده
ها دهندارو ځانگوره غځیدلې ونه
چې دهرښکلې دتصویرمارغه مجبور دی چې وزر ووهي
اودې ونې په خوروڅانگو کې ځاله وکړي.

۱۹۹۷ دمی ۱۱ پیښبور

# لوی خدای ته فریاد

لویه خدایه! لویه خدایه!

ته پرده د پیغمبر د خرقې وکړې

پروطن چلیږي راج دابوجهل

هرې خوا ته جهل خپور دی

کلیوال مو پوروړي

د مرګي د سوداګرو

پرې دژوند دسکو پور دی

****

لویه خدایه!لویه خدایه!

داسې ښکاري نوح وفات دی

په طوفان کې بېړی پاتې

د نجات لنګریې مات دی

او دمینې مانوګان یې

نهنګانو دي خوړلي

سپین لباس د پرښتو ،ابلیس اغوستی

پټ په غوړ کې نهنګانو ته څه وایي

*****

لویه خدایه! لویه خدایه!

دغوتیږو پیغلتوب مو

دخزان اغزو لوټلی

هازمونږ دشهیدانو

دزخمونو غنچه څه شوه ؟

دغازي وزیر اکبر دقهر ژبه

چې بې غږ د اسرافیل دشپیلۍ غږ و

بې خدایانو ته یې یو ټکی و تندر

چې دحق په مستانه لیوني شور یې

دغاصب غوږ و ، وژلی

مکنا ټن یې په یوه غږ و ، وژلی

په ژړا کې یې چې داوې :

ـــ «ازبرای خدامکش

مکش ، مکش ، مرامکش »

کوم باطل ابن باطل و ؟

چې یې ژبه دغازي کړه رانه غوڅه

کوم فرعون رانه طور د رڼا لوټ کړ ؟

چې نه لار وینم په ښۍ او نه په گڅه

رود نیل دوینو یوورم

لرې ، لرې له گلکڅه

لويه خدايه! لويه خدايه!

د تاريخ پر حافظه مو

ځنکدن لاسونه اېښي

له تېږې يې وينې څاڅي

د ملالې پر سروشونډو .

چا اغزن لاسونه اېښي؟

****

غنمرنگ اياز په گورشو

گرگوتي څنې يې وخوړې چينجيو

د محمود د تاريخ مست خمار مات شوی

د مرگي په زهرجنو زرو ميو

پر گردو موېټ د فخر عرفات دی

د مومنو زړو لعلونه يې خوړلي

پياله سره ژوندی شوی سومنات دی

د جومات پر محرابونو باندې بلوسي

پر سپېڅلو کتابونو باندې بلوسي

پرڅانگو څو بلبلانو يې پښې اېښې

د غوټۍ پر نقابونو باندې بلوسي

******

لويه خدايه! لويه خدايه!

داحمد دپت پګړی مو

رنګه ول په ول پرته ده

دغنمو طلایي کرونده لوټ ده

د پردیو په لړونو

دغنم وږي یې پښو لاندې ماتیږي

پرې غوبل دی دغوایانو او دخرونو

*****

لویه خدایه! لویه خدایه!

دهوس خنداخواورې!

ددیوانو ابلیسانو

دبې خدایه بې عرفانه

بې حیابوالهوسانو

****

لویه خدایه! لویه خدایه!

لا ړه لا ړه ،

دپاکې زمانه لاړه

دمعصومو ښاپیریو

پرښتو پرده دې غواړه

پېښور، ۶/۴/ ۱۹۹٤



شپه تیره کرە دورانگو دباران سره بەخي

لږ تم شه دهندارو دکاروان سره بەخي

گلچین به دي غوټۍ غوټۍ تەواچوي لاسونه

ښایسته رنځوره گله له باغوان سره بەخي

لږ پام چي اهریمن دپرښتو لاري وهینه

دمیني لاروی یي له یزدان سره بەخي

رنځوره نرگسي ښکلادي زر گلا به ارځي

له زیر شاعرانه رنځور خزان سره بەخي

دلمر جامي چي واغوندي کندو ته به راځي

سپوږمۍ به شي له ستورو د آسمان سرد بەخي



مـــا تـوي مــو دغــمــيــو تـندي كــانـي
مــه يې گـــوره راروان دي پردي كـــانـي
ســره په وينـو دگـــلاب او ريدي كــانـي
رانـه وژنـي دبـبـــريـو كـــودي كــانـي
بدرنـگ مـــخـي وايـي مـړې دې وي هنـدارې
تـل تـر تلـه دې اوســيــبري ژونـدي كــانـي
تـوربـښـامــاردســحــر لال پـه ولجـه وړی
خــدايـه!ولـه يې دغـيـب پـه گـــردي كــانـي
دومــره وس خــوپـســر لـوتـه ربـه وركــړه
چې دگـل پـه زولنـو كــړي بـنـدي كــانـي

□

بې له مینې مرو په مینه مینه پایو

ملامت نه یو خدای مینې ته پیدایو

که راځي هم د آسمان پر تندي ګونځې

چې ګلان یې کړو د ځمکې په موسکایو

شاعران یو د رڼو اوښکو پرپاڼو

د زړه وینې کړو سندرې بیا یې وایو

که په سترګو مو تسبې لېدلې نه دي

کافران نه یو جانان په خالو ستایو

د سپین مخ و اننګو ته مو سره بار دي

چې په بیلو پښو کاروان پر اغزو بیایو

۱۳۷۲/۱/۲ د تنیو غرونه



ساقي زما دژوند مزار جاروکړه
زما له زړه نه يې غبار جاروکړ
لکه باران په ترنم راغی
داغ يې د تبې لاله زار جاروکړ
لمر هم دوړانګو جارو واخيستله
نن يې ګودر په سپين سهار جاروکړ
پستو بادونو ځني خندوهلې
له ګرد غبار يې شين چنار جاروکړ
دخنوولونه درباب تارونه
مستو سندرو مې شاتار جاروکړ
*هارون د طور درنا جام راکړ
کاروان د تورو شپو خمار جاروکړ

۱۹/۷/۱۹۹٦ پېښور

*زما ګران ملګری چې مشر زوريې موسی نوميږي



سرغړاوی مو دبې دينو له ايينه وکړ
مرگ په خوله کې موژوندون څومره په مينه وکړ
گلونو! گام منده مو هم شنه په فطرت کې نه وه
سخت بغاوت مو دگلونو له گلچينه وکړ
دوران کابل بدرۍ دوران کابل ملوکه منم
نگ له کابل مو نه ترقافه نه ترچينه وکړ
ه زر کوستر گو نه موتش دنظر غرونه مه شه
پرواز دعشق يې دفولادو له شاهينه وکړ
مينې لمونځ مو هم له ټولو تکبيرونو سره
په اوبو نه ددوو زخمي زړونو په وينه وکړ
دلر په سيند له ځانه ومينځئ دستورولشې
دانتظار دستورولو مو تر پروينه وکړ
وې يې دشاتو دمچيو په شان گرځې پرمونږ
ستاسو تپوس مې له نرگس او له نسرينه وکړ

پېښور ۱۹۹۵/۳/۶



مونږ د طلايي ستورو فصلونه پخیدونکي یو
درمند ته د لمر د سپوږمۍ غېږ کې رسیدونکي یو

ژوندمو پر مرګي مین، مرګی مو پر ژوندون مین
مونږه لیوني د دار د کلي اوسیدونکي یو

څارو د درد لارې، خوښکالو د پټي نه راځي
ډیر که د زخمونو په غوږونو اوریدونکي یو

مونږ د اوښکو ورونه بارانونه، بارانونه یو
خانده راته خانده ګله بیا راوریدونکي یو

خدایه! چې دِاسترګې مو خوږې په ښکلیو ولې شي؟
ښایي له ازله به د ښکلیو پیژندونکي یو

مونږه په کټ کټ خندا ته نه یو پیداکړي رب
مونږ پر پیغمبرو اوښکو ورو، ورو، موسیدونکي یو

لمونځ د میني تل د ځیګرخون پر مصلې کوو
خدای ز مونږ جانان دی له جانانه زاریدونکي یو

مونږ د ژوندون ډمې ته د زړونو ګونګري واچول
ځوان بو ډامرګی شو څه بې باکه شرنګیدونکي یو

باړه ګلی، ۱۶/ ۵/ ۱۳۷۲

# یکه زار

بیا دکوم شهید په شان دیدار ته مخامخ یمه
خُم ته مې تکیه کړې ده یار ته مخامخ یمه

خدای مې ناست په زړه کې دی باران پرګلو ځي راځي
ټول ټپه ټپه یم ،یکه زار ته مخامخ یمه

خیال کې مې رواني دځبریو دنګې ونې دي
څو ،که دپستوجینکو ښار ته مخامخ یمه

خوند مې لاله سپینو خولګکیو نه اخستی نه
شپه په ولجه ستوري وړي ،سهار ته مخامخ یمه

زړه دمهاجریم خو هجران راته جانان،جانان
ستا دخمار وسترګوانصار ته مخامخ یمه

روح مې لوی ګړنګ دی دنغمو له ازانګو نه ډک
ښایي کوم غیبي لوی سندرمار ته مخامخ یمه

راشه او پرغاړه مې دلپچو امېل واچوه
سر مې پر اوږو راوړی دار ته مخامخ یمه

*بازلرم ،سالک لرم ،دمیني ممالک لرم
دم غنیمت بویه چې نثار ته مخامخ یمه

ووایه کاروانه موکل دکوم یو راګ یمه؟
تار مې له رباب سره ستار ته مخامخ یمه

*نثار ،سالک اوباز زما شاعران او ادیبان یاران ۱۳۷۶جوزا

# یوه ښکلي لیوني ته

راشه د تصویر بارانه نن دوریدو دی وخت
راشه د هندارو د کاروان دباریدودی وخت
لاړو د نغمو له پاچهی نه مرورفقیر
هغه ببرسری مستانه اوقلندرفقیر
یو یې ورود لمر کچکول دوړانګو په وزرفقیر
نه یې پکې سیم له چانه واخیستل نه زر فقیر
نن یې لوی سلام ته دهر سر د ټیټیدو دی وخت
هغه لیوني به غیږ کې راوړل د آسمان ستوري
توري شپې دځنو ته خندانه ډک روښان ستوري
ورو ،وروبه یې تاوکړل په نغمو کې دجانان ستوري
ډک له ښکلیو ښکلیو آیاتونو دقرآن ستوري
غاړه کې یې یو وړل وې یې بس دځلیدو دی وخت
وې یې پورته خیژم دسپوږمۍ په سفینه کې ځم

گورئ مې انځور ته دجيندي په آيينه کې ځم
درد يم دسندرو دوختونو په سينه کې ځم
ځم ليونو ترږو ته داوښکو په چينه کې ځم
خاندم په بيلتون پورې ښه ډير دخنديدو دی وخت
زه يوازې نه ځم راسره ډيرې غوټۍ هم ځي
پانې پانې گل راسره دروحي لولکۍ هم ځي
ماسره رنگينه دخوبونو دنياگۍ هم ځي
اوس دراز دغوټې اوتعبير دسپړيدو دی وخت
ماخوقافله دپښتنو پرستورويارغوښته
مادويم ديارلبچه اول کړۍ ددارغوښته
سره لمبه مې بله دوجود پرشنه چنارغوښته
زه دحورو ،وړی نه وم ما رضاديار غوښته
اوس مې دهجران دهريوداغ درغيدو دی وخت
ماوې سپوږمۍ ماته کړم دستورو ،وربيا ته زه
ماوې چې غمي يې کړم دتيک خپلي ليلاته زه
پريږدئ چې هک پک يې شم په خپله ونيکلاته زه

پریوته تیشه رانه چاراوستم دې خواته زه
وې دنور په سیند کې د کشتۍ د گرځیدو دی وخت
جوړه دنغمو له تاروپوده دا یام خیمه
زړه دغني خان دبغاوت او دقیام خیمه
توري دقلم یې نه منله دنیام خیمه
والوته زمونږ له میخانې نه دخیام خیمه
مې نه شته کاروانه دتش جام دماتیدو دی وخت
راشه دهنداږود کاروان دباریدو دی وخت
راشه د تصویربارانه نن دوریدو دی وخت
*ټکنه غرمه دلیونو د گرځیدو دی وخت
لړه تروږمې د یاردسترگو دلیدو دی وخت« غني خان »
۱۷/۳/۱۹۹٦ پیښور دغني خان دوفات په دویمه شپه

# دسپین جانان شین لیک

باد ونه غیره کې د تندر نغارې غږوي
بوربوکی ناڅي له مستۍ نه ښې پرځمکه وهي
چې د کوترو دوزروشغاشغ یې چیرته لرې وړی
چې دشپونکي دشپیلۍ غږیې له تپې او له سندرې وړی
په دې ویریږم نه چې دوی به رانه سمې یوسي غرونه یوسي
په دې ویریږم نه چې لمر به رانه پټ او سحرونه یوسي
په دې ویریږم چې کوترې به یوې ورکې جزیرې ته یوسي
په دې ویریږم چې شین لیک دسپین جانان به هدیرې ته یوسي
زما جانان دښایسته سپینې کوترې په لاس لیک ورکړی
پرسپین کاغذ یې ښکلی ښکلی و په شنه زرغونه رنګ لیکلی

۱۹۹۷ د مې ۱۱ پېښور



خوبه ورځه چې دلته رانه شي تعبيراوده دی
زما دسترګو په هنداروکې تصويراوده دی
بنګړومو ورو ،ورو شرنګوئ دخوشحالۍ جينکو
نه چې راويښ شي دماشوم په شاني وير اوده دی
ځوسيو سترګو پسې مرمه خدايه ويښ يې نه کړې
سريې پرلپچه دليندې اويښې دی تيراوده دی
وروستۍ شيبې راته ښکاريږي دغاوره سلطان
په خوب کې سردښامارغوځ وينې فقير اوده دی
ويښه دنياده دميږي دپښو ښکالو هم اوري
زما فرياد چې ناوري داخويې ضمير اوده دی
شهيدې ميندې وينې خوب کې افغاني ماشومان
په توده غيږکې *بلاول دبينظير اوده دی
ويښ دی زنځير چې له لاسونو لکه مارتاويږي
چې زړه له زړونو سره وتړي زنځير اوده دی
زرشه راووځه له ښيښې نه دغزل ښاپيرۍ
يوازې ناست يمه رښتيا وايم *«کبير» اوده دی
ګلې سبابه يې ته هم شې دغزل مريده
نن مې په زړه کې دغزلو هغه پيراوده دی

*زماماشوم زوی چې په پيښورکې څه موده له ماسره يوازې اوسيده

# راوي

راوي زما د کلي
له افسانې نه وریښمین تال جوړ کړی
په کې تالی، وهي ماشومه نړۍ
زما د کلي د کیسې د قهرمان له زخم
د بې خوبۍ زخم ته خوب شو کوي شومه نړۍ
راوي کیسه کوي کیسه داسې ده:
ـ هغلته لرې د دنیا د لویو، لویو کلیو
له نظرونو نه پریوتی یو یل کلی پروت دی
د خپل ارمان د ګور د پاسه لکه ځلی پروت دی
د کلي نوم دی رانه هیر خو ورته وبه وایم:
ـ د بورو کلی او د وراړو کلی
سره په جنګ د توروکانو او هنداړو کلی

دکلي پیغلې هره شپه داسې خوبونه وینې:
چمبې په لاس کې اوشرنګا دبنګړو
دخپلو وروڼو په ودونو کې سندرې وایي
خاندي نڅاوې کوي
خوچې سهارشي نه چمبې وي نه شرنګا دبنګړو
دزلمو وروڼو سرته ناستې وي کوڅې شوکوي
اودویرساندې وایي
راوي تردې ځایه کیسه رسوي
دلویو کلیو داماشومه نړۍ خوب زنګوي
کیسه لاخلاصه نه ده
راوي دډیروشپو لپاره داکیسه اوږدوي

۱۹۹٤داپریل۱۷ ،دکاکاصیب سیمه



راځه چې وکړو يو دوه درې حبرې
زوی مړې ژوند ته لږ خوږې خبرې
راځه چې ويې پېيو خدای پرې ياد کړو
دعشق په تارلکه تسبې خبرې
دنرگسې سترگو پيالې مې څښلې
کوم اغزيو ته کړې خبرې
زما دزړه دموم په لاس کې کوي
دلبې ژبه دجنډې خبرې
پر زړه مې راغلې تاکړې وروځې پورته
ريبې په تورو لرو شنې خبرې
بوی يې دسويو پتنگانو راوړ
ښکارې قاتلې دډيوې خبرې
يوستا دځنو کيسه لنډه مه شه
بل دزاهد مه شه اوږدې خبرې
په برگو سترگو کې دې گډې وډې
څه هم دورځې څه دشپې خبرې
يوه خبره ده «سروش» مې ته يې
په دې کې نه ځايږې دوې خبرې
لکه دشاتو دمچيو کاروان
کوم گلپانيو ته پستې خبرې



غــور غــور ومــه چې غلی غلی یار غــږیده
په زړه کــې مــې نری نری ســتــار غــږ یده
نبات چې یې دســتورو پرې دشـپـې خوړلي وو
له لمر ســره په ســپــینه خــوله ســهــار غــږیده
پرون مې په خلوت کې ترې اخستې وه خولگی
خــبــرچاکــړ چې نن راپســې ښــار غــږیده ؟
بلبل تـه په شــبنم کــې چارانجــه ورکــړي وو
لـه گل ســره ورو ،ورو لـکـه بیــمــار غــږیده
پرســـرمنگي داوښکو وو ددرد دجــینکو
کــاروان چې لـه گــودراو لـه چنار غــږیده



دریاب مات هغه ونه ژاړم دستار وینې
دانې دانې لکه تسبې شوې په هر تار وینې
ساقي سپرلی شه د شرابو باران و وروه
داوښکو للمه کې مې وچې د خمار وینې
په بیړه بیړه یې ترې د کږه کږه بوخچه د شفق
رانه ماښام په ولجه یوړې د سهار وینې
د سر زخمي ستورې یې توره شپه لمبه کړه
د ښار په برسرکې روانې دي له دار وینې
د سترګو ورانديې به مې شنه شي د دیدار ګلونه
ډېرې مې څښلې دي ملګرو انتظار وینې
سپینې کوترې د جومات یې سات په سات وژلې
چې یې راڅاڅي څاڅکي څاڅکي له مینار وینې
جنډه د قبر مې هغه ښکاري ته لاس په سلام
چې یې شیندلې وي په غشو د ښامار وینې
کاروان په ورکو لارو تللی بیرته هیڅ رانغی
داوښ څوندې په وینو سوردې په مهار وینې

د لوی حمزه بابا په یاد کې!

# د غزل د بېړۍ نوح ته!

زړه مې رېږدي زړه مې رېږدي، نن مې کډې د یار لېږدي
ځي د ملر نیلي یې زین کړ، شهزاده د سهار لېږدي
شمله ورخیبر خبر کړئ، چې تندی د تعظیم ټیټ کړي
چې خیبر یې راژوندی کړ، لوی سړی د دستار لېږدي
چې د ګل لیوني عشق یې، په اغزو تویې لېمې کړې
راته پیغلې یې نغمې کړې، د سندرو سردار لېږدي
د غزل په میکده کې، چې یې زړه تږو ته جام شو
زغم د تندې یې تمام شو، ځي کشر ته خمار لېږدي
نه د بلخ نه د تبریز و، نجدي هم نه و پښتون و
مولانا شمس او مجنون و، هم دلبر هم دلدار لېږدي
چې ځپې یې د سندرو، مستانه سمندري وې
د تسکین غېږې ته ورو، ورو، په تمکین په کرار لېږدي
غزلیز لاهوتي روح و، د غزل د بېړۍ نوح و

# یوه ګرځنده ګل ته !

ټولې خبرې مې زه بیرته اخلم
خو ته له ما سره خبرې کوه
دروح وزرمې ستا په غیږکې ربې
ګله بوراسره خبرې کوه

***

ته داووپاڼو یو ګرځنده ګل
په هره پاڼه کې ګلونه لرې
راشه مالي به دې شم ښکل به یې کړم
که په غاټول زړګي داغونه لرې
راشه که ستړی یې دمه به دې شم

زه هم دزړه په نوم ګلدان لرمه
خوندیې له سلو آزادیو خوږدی
یو مینه ناک غوندې زندان لرمه

***

ګله ! په رګ رګ کې مې وغځیږه
راشه چې پانیو ته دې وینه ورکړم
راشه ژوندی شي دآسمان پر پانیه
دغزل زانیو ته دې وینه ورکړم

***

خدایه سره سره سیلی راولې
چې پانې پانې نه شي تول دې راوړي
تولې قبولې شي دخدای په دربار
ددعاګانو ډک کچکول دې راوړي

***

ستا پانیه پانیه به دژوند په رباب
خوږه خوږه لکه مضراب کیږدم
لکه بنکې دطاووس به دې بیا
دخدای په بنکلې الکتاب کیږدم

***

چې پانې پانې دې شي سپينې تورې
دخوشال خان مستې «سيلۍ »راشه
دخيال په سيند کې مې لامبو ووهه
لکه سوچه سپينه هيلۍ راشه

***

ټولې خبرې مې زه بيرته اخلم
خو ته له ماسره خبرې کوه
دروح وزر مې ستا په غيږ کې رپي
ګله بوراسره خبرې کوه

سپينې بازې!

زمونږ په کلي کې وې ډيرې ويرندوکې ،تکې سپينې ښايسته کوترې

چې دزيارت ددنګودنګومنارو له جګوغاړو تاويدې تاويدې
چې دياغي ياغي بازانو له ښنا نه وريدې ويريدې
چې په پستوکو اووريښمينو پنجو
زمونږدکلي دبامونوپرسر
دباز له ويرې غلې غلې ګرځيدې ګرځيدې
چې باز به نه و په کټ کټ به خنديدې خنديدې
څه په مستۍ به نڅيدې نڅيدې .

له يوې بلې به يې تکې سپينې غاړې تاويدې تاويدې
خو ته زمونږ دکلي
دتورو غرونو سپينه بازه وې کوتره نه وې
سپينې ښکې دې دلمنځو او نښترو په وږمو مينځلې
خپلې پنجې دې دشهباز په شانې
دځنگلونو په مرموزو زمزمو مينځلې
مدام دې ښکار دشنه آسمان دسپينو ستورو کاوه
تا دبې ژبو او وړو ،وړو مارغانو پرځای
ښکار دققنس دسوي لوي غزل
دغزلتورو کاوه
دسترگو رپ کې به له قافه نه ترچينه لاړې
دزړونو بندلو پنجرو ته لکه مينه لاړې
ته هم زمونږ دکلي
دتورو غرونو سپينه بازه وې کوتره نه وې
ربه دعا مې واخله
هغه بيانگې دې چرې لويې نه شي
هغه آسونه دې په تکو مړه شي
چې له وينبتو يې سپينې بازې ته جوړيږي لومې
دهغه شاه منگولې غوڅې شه په سپينو تورو

چې له هوسه يې توسيږي په رگ رگ کې وينه
غواړي چې وينځه يې شي سپينه بازه
او پرمنگول يې کښيني
ته يې زمونږ د کلي
د تورو غرونو تکه سپينه او سرکشه بازه
ته وېرندوکې د بامونو ،منارو سپينه کوتره نه يې
زمونږ د کلي د سرکشو غرونو سپينې بازې
د خيال پنجې دې د سندرو د مارغانو په سرو وينو سرې دي
خدای دې ليکلې پروزرو کليمه د مينې
ستا په ښکو کې يې پټ د آزادۍ د غزلونو يو ديوان ليکلی
آزاده اوسې خدای دې هيچيرې غلامه ،مه کړه
چې په پنجو کې د سپوږمۍ سپينه کوتره راوړې
سينه يې څيرې کړې او زخم يې رڼا خوره کړي
ستا سو د کلي شاعر
دومره غريب دی چې ډيوه نه لري
په توره شپه کې ستا په نوم يوه سندره ليکي



د تندې شپه او دژوندون داتکې سپینې اوبه
داکوم حسین راکړې په لپه کې دمینې اوبه
خدایه لاسونه دزرینو ستورو وروېې
پرمسا پر ماښام چې وشیدې زرینې اوبه
زما دزړه دزخم ګل ورسره وغوړېږي
ستا پرشیرین حسن چې اوري نمکینې اوبه
دګلو پرخه دپی مخیو دمخونو خوله
زما خوښیږي له بې رنګو دارنګینې اوبه
هغه ویالې هغه دسپینو سپینو لپچو په شان
خدایه مرهم را له زخمونو یې ځي وینې اوبه
لکه غنم غوندې مې وریږي دوروځو په لور
ځنو سپین مخیو ته چې خدای ورکړې غلمینې اوبه
خدای زده چې ولې یې غزلې دي شڼلې غوندې
کاروان خو څښلې دي په غرونو کې مهینې اوبه
دعاشورا ورځ ،لاهور پاکستان ،جوزا ۱۳۷٤



گله چې پاڼې دې چړې شوې په تلوار تيريږه
مه ايساريږه ،مه راګوره ،کوه وار تيريږه

ګلورين درد ته مې زړه کيږي پرهارونه راکړه
نه چې اغزي دې لمن ونيسي کرار تيريږه

دژوند شپې مې درته جوړ کړ د چندڼو ځنګل
پرخانګه څانګه په مستۍ لکه ښامار تيريږه

شاعره حسنه يو رنځور مني پرمار اوله
په نوره تپوله دنياګۍ لکه بهار تيريږه

هسې نه وچ شي دادللمې سوي لوي ګلان
ورشه دغره پېغلې چينې کړه رامهار تيريږه

دزړګي پوخ فصل مې وريبه ږلۍ به راشي
لکه تپه په ياقربان اويکه زار تيريږه

زمونږ زګيريو له تاوړي دي دناز خوبونه
لږ مسيحاشه دبيمارو پرديار تيريږه

نوم دې چې وچ نه شي ليکم يې دوجود پر چنار
دتکوشنو اوبو وياله شه پرچنار تيريږه

بارډ ګلي ،١٩٩٤ داګست ٢١ مه



حیران یمه له ښکلیو نظر څنګه واړوم؟
په لمر مینان ستوري له لمر څنګه واړوم؟
بُتان زما په زړه کې ګلاب مخي جوړوي
له دې ښکلوکي کفره ازرڅنګه واړوم؟
ترمنځه یې یو لاس تبر په لاس کې دی راشین
وې لمنځې چې اوس لاس پر ښتر څنګه واړوم؟
له زړه هیریدل ګران د ددردونو دامت
له ښکلیو نه دعشق پیغمبر څنګه واړوم؟
لینډې ماتیدل ښه دي که لاسونه دښکاري؟
دغشیو له ویشتلو شمر څنګه واړوم؟
حضورته یې دخدای راوړ په غیرکې دغزل
کاروان دتخیل له هنر څنګه واړوم؟

۱۹۹۶۹/۵/۳ پېښور



شپه وه ژوندی راغلمه سحروژلی یم
شوم شبنم دگل په غیږ کې لمروژلی یم

ژوند مې لکه دردو ،دمرهم غوندې جانان
اخ څومره په خوند لکه پرهروژلی یم

ښکلیو مې کړې اوښکې دالماسو غاړه کې
دیرو تندرونو لکه غروژلی یم

ماوې صُحابې ده خوشبه وه دړلی
زه یې لکه ګل دپیغمبر وژلی یم

خدایه چې پښتون دې کړمه غچ له چانه واخلم
زه خو یو نه یمه لښکر وژلی یم

تش کودې مې ډک دې لکه لپې له دعانه
تالکه دبرکلي ګوذر وژلی یم

روح مې دسندرو په هرتوري کې رپیږي
مستې سندرماړې په هنر وژلی یم

خوله کې يې اوبه رانه وړې هېر به يې وم ربه

زه يې لکه ګل دوچ کم روژلی يم

ستورو سپین لاسونه سره زما په وينو دينه

زه د هلال توري په اختر روژلی يم

شو، مې خاورين لاس زرين امېل د سپينو غاړو

داسې ښايستو کې کيمياګر وژلی يم

*يوه شهيد شاعر راته په خوب کې وې کاروانه

زه خو اژدها د پېښور وژلی يم

*شهيد ډاکتر بها الدين مجروح

دنغمو په تيغ مجروح و ،لکه شرنګ دستار ليږدي

په يوه يارپسي يې زړه و ،له پرونه لاړې ،لاړې

خونن لاس په غاړه دواړه ،ځي دمينې پر لار ليږدي

ليوني دي چې څوک وايي ،ارامځي يې په خيبر کې

ځي دزړونو هديرې ته ،دخوږ زړه پرستار ليږدي

چې موسکا ديوه آشنا يې ،وه په هرغزل کې غوټه

په ژړايې غوټې سپړم ،نن مې هغه ريبار ليږدي

بس دحسن په کعبه کې ،سندريز دمينې لمونځ و

ليونيو خواداکړ ،خو قضا له هوښيار ليږدي

دباګرام سروشه راشه ،دحمزه سندرې راوړه

ماشوم دردمې الاهو کړه ،نن مې زړه ته پرهار ليږدي

که هر څو له ځانه جوړکړم ،يوکاروان دپتنګانو

مابه تورې شپې ته پرېږدي ،دڅراغونو کتار ليږدي

پېښور ،۱۹۹٤دفبروري ۱۹شپه



تقــدس دي په لــمـــوكـــي ،دځلورو كــتـــابونو
عــشق مــي ستـا له مــخــه زده كړ ،نه له نورو كــتـــابونو
طالبــانو مــي دســتــرگــو ،بوراگــانو غــوندي لوســتــي
دغنچــو اودگلونو ،په ســمـــســـوروكــتـــابونو
شــپــه او ورځ دي يادومـــه ،باب دمخ اوباب دځـــنــو
څــه په ســپــينوكــتـــابونو ،څــه په توروكــتـــابونو
دسپــوږمــی پيــغلي كــوډگــري ،دوصــال تاويز يې راكــړه
چې يې پټ رانه ســاتلي ،ســتـــادســتــوروكــتـــابونو
مــادخيــال په چاودو شــونډو ،دبوســي سندري لوســتــي
ســتـــادگــرمــوگــرمــو شــونډو ،دتكوروكــتـــابونو
مــلايان به دي كــافــركــړي ،منصــوري غــزلي وايــي
لږخـــولاس واخله كـــاروانه ،له ســـرزوروكــتـــابونو

پيښور ۱۳۷۲/۹/۱۸



له تندې مې سيزي دسرولمبو په څيريوڅوک
كرم راباندې نه كړي داوبوپه څيريوڅوک
تندي كې مې پرتې دليونى مينې سجدې
مونډلى مې لانه دى دكعبو په څيريوڅوک
شپه په پرشپه لولمه په سوي ترنم
دسوو ترانو دكتابو په څيريوڅوک
ساقي دجام په لمريې كړه دفصل په شان پوخ
چې شين مو دى ترمنځه دتوبو په څيريوڅوک
په مخه مې راځي خو په شا نه راګوري هيڅ
ظالم دى رانه تيرشي دشپبو په څيريوڅوک
په سترګو كې يې پټ دي يو كم سل نومه دخداى
په غاړه دنظر مې دتسبو په څيريوڅوک
اى كاش چې پرمزارمې كيږدي هغه مرمرين
لاسونه چې لري دكتيبو په څيريوڅوک
تعبير يې راته ووايه كاروانه دغزل
په وينه كې هم وينم دخوبوپه څيريوڅوک

۴/۲/۱۹۹۵ پېښور



لاس دې راکړه ستا په لاس کې مې ژوندون دی

ستا په لاس کې دکاروان دمینې یون دی

ستا په لاس کې دسپوږمۍ درڼا مراندې

ستا په لاس دسپینو ستورو پیوستون دی

اوږدې ګوتې دې دوړانګو سپیدارونه

په ورغوي کې دې لمر دسباوون دی

غیږ ته راشه چې دشونډو شعر دې ښکل کړم

ستا بناګرام خو جمهوریت دافلاطون دی

چې دې راکړ امانت دمینې زړی

اوس یې چیرته وړې په زړه کې مې زرغون دی

ماشوم عشق دې کړه راویښ چې لږ مشغول شي

پرې شل شوی مې دستړي زړه ځنګون دی

ګیله مه کړه که نازک غزل یې نه زده

ستا کاروان خو دشډلو غرو پښتون دی

۱۹۹٤ پېښور



په تورو کاڼو کې هنداري ګورم
ستـــاد تصـــوير د کلي لارې ګـــورم
دا زړه مـــې دوې نړۍ مـــســـتـــۍ لټـوي
څم چيـرته دوې سـتـرګــې خـمـارې ګورم
چـاردې لـه غـشــيـو ننداري دې راګـړې
دخـــپـل څـــيگر دوينو دارې ګـــورم
د درد پـه لاس کـــــــې ورم ډ يـوه د پـرهـر
په وينو ســرې دوخت نوکـــارې ګـــورم
د بـاران مـــــــورده پـر ګـلـونـو بـوره
بس تشــې شـاړې اوشـــود يارې ګـــورم
تصـــويردپړانګ راکــوي شـپــې او ورځــې
دژوند هوســۍ په کــې ايســارې ګـــورم
چـايې د پـرخـــې پـه لاس نبض ونه نيـــو
د خـپـل غـــزل غــوټۍ بيـــمـــارې ګـــورم

۱۹۹٤ دا کتوبر ۱۹ پېښور

# د درد غزل

څه تاله درد تاله پرهار خونه یم
څه ستا دزړه پر اوړو بار خونه یم

دخپلو اوښکو سمندر یمه ځم
ستا په کچکول کې را ایسار خونه یم

له کروندې نه دي چې لمر ونیسم
ستا دپټي پرسر چنار خونه یم

که دوخت باد ستا پرلېمو راوړم
پاسته رانجه یمه غبار خونه یم

شهید سهراب یم خپل رستم وژلی
زه دضحاک پر اوږه مار خونه یم

ماوې بلبل یې خولېمه دې بریښي
غمجن ماښام یم شوخ سهار خونه یم

راغلم جوهر دې دهنداري شومه
کانې خونه یمه گوزار خونه یم

که دې پولې وي په پښومه پرې راځه
دخپل کاروان یمه ،ستالار خونه یم

# په هنداره کې تصوير

کله چې روح مې دسندرو په زانګو کې زانګي
کله چې زړه کې مې څوک غلی غلی تمبل وهي
کله چې خيال مې ديوه ښکلي زرين کب په شانې
دبې غزله زمانې له لاس نه وښويږي
دغزلونو سمندر ته دانګي
خدای زده له کوم طرف نه
يوه هنداره راشي
په کې راتوله مې خوره وره دنيا شي
په کې دچا ليونۍ سترګې په ځلا ځلاشي
په کې دګل غوندې څيره وينمه
چې يو ماشوم او درواغجن قهريږي
پرپانه پانه خوروي
دليونۍ په څير ناڅاپه له خندانه شنه شي
او دغزل په توري توري مې رڼا خوره شي
زه په هنداره کې له ناستې غزل بولې سره
دغزلونو په زرينه ژبه
داسې خبرې کوم:



پښتنې سترګې د مغولې او رقيبې نه شي
د غريبانو غني مينې دې غريبې نه شي
لږ خومې نبض د نظر نيسه د ښو په ګوتو
مړ شو که ستا رنځورې سترګې بې طبيبې نه شي
دلمر ډولۍ کې د سبا ناوکۍ نه شوراوړاى
داد غم شپې که غزلبولې او اديبې نه شي
د پښتنو نه د بخت پر زخم مالګې ودوړوئ
چې پرې د خوب شيبې راپيښې بدنصيبې نه شي
خزان د پيغلو ګلغوټيو پيغلتوب لوټوي
د کابل جان غوټۍ دې چيرې نانجيبې نه شي
د چم د ګلو د بلبل په نغمو سود نه کيږي
چې د کاروان خوږې غزلې بې حبيبې نه شي

۱۳۷۲/۹/۲۶ پېښور

ــ اې ليونۍ چې نوم دې جوړ دی له اووګلونو
نوبيا پرخپلې ښکلاولې يې شکمنه دومره ؟
مادې دګل غوندې تصوير وغوښتی
چې د « ډيوې »غوندې په ښکلې مجله کې خپورشي
چې د پتنګ غوندې دمينې په لمبو کې سکورشي
تاراته څه زرين درواغ وويل:
ــ« کاروانه ماسره تصوير نه شته
مادېر ليدلې دي زرين خوبونه
خولا يوه ته هم تعبير نه شته »
اې په هنداره کې تصويره واوره
زرين درواغ دې له رښتيانه هم،
په زرځله حسين دي حسين
زه په هنداره کې تصوير ته ګورم
ورغځومه دغزل لاسونه
چې له هندارې نه تصوير راواخلم
بيا يې دخپل زړه په کتاب کې چاپ کړم
تصوير ناڅاپه دهندارې له رڼو،
اوځليدونکو لاسو
دزرين کب په شانې وښوييږي

۱۷ / ۲ / ۱۹۹۵ د روژې اتلسمه پېښور



داژدها پرژامه ژوند تیروو
دشپبو زهرخه په خوند تیروو
زړونه مو رنګ لکه مانۍ دکابل
عمر په تمه داوربند تیروو
سحرموسورلکه منصورپه وینو
یلداد توروپرمرو ند تیروو
دفریادونوملاموغبرګه ماته
دسلګولاس یې پرپیوند تیروو
لکه طوطیان وهوپنجرې په وزر
دآزادۍ په مسینه بند تیروو
ډیرېې په ماتووعدو وغولیدو
دایوخوشپې یې په سوګند تیروو
دمیوندۍ سندرو غږ نه راځي
روح دملالۍ پرمیوند تیروو
یاران په لوی کابل کې نه ځاییږي
مونږ ملنګان یو شپې په کند تیروو
کاږه بانه دې دلیوه نوکارې
زخمي کاروان ستا پرابلبند تیروو

۱۳۷۲/۳/۸ پېښور



دخدای دمستې موسکانورېې په لبمو کې وينم
نظرېې ثښبمه الطهورېې په لبموکې وينم
شاخ نبات دشيراز جارشه دباگرام له سروش
سوی کابل په وينو سورېې په لبمو کې وينم
زمادپوخ زړگي اناريې په زړگي وريږي
داسې دډير عمررنځورېې په لبمو کې وينم
دی امتي دمحمد روح يې سرود د داود
اسم آعظم دی که زبور يې په لبموکې وينم
په کې مې واړاوه دخامو غزلونو کاروان
چې راته پوخ يې کړي تنورېې په لبمو کې وينم

۱۹۹٤داپريل۱٦دکاکاصيب زيارت ته مخامخ غونډۍ



کـه د تسکین د نرخ ځـواني آن تر آســمــانــه رسي
زکــــات درد ،دسکـومــــاتـه له جـــانانه رسي
دزړه گــود رمــي دزخـــمــونو مــازدیگر مــوندلی
چې ورته غــشي دشــغلو ســتـــاله پیــزوانه رسي
دبدرنگی دوه رنگي برگ پړانگان دي لارې نیـســي
خــو دښکلا مـــســتـــه هوســی به تربیــابانه رسي
ښــي به تورمـــخـــې شي په تورولوغــړنو وینو
ســپــینې چړې چې دزخـــمـــونو ترگــریوانه رسي
دوطن پیــغلې مــې په غــاړه وړي داوښکو امــېل
دپاریس پیــغلوته غــمي له بدخـــشـــانه رسي
دگل په لپـــه کـــې به ترې دعـــا لولپـــه شي
چې دباروتـو پـه ســیلی کـــې تـربارانه رسي
دغـــزل توري لکه ژوبل دکـــابل مـــاشـــومـــان
وړې سلگی یې تربا باعـــبـــدالرحـــمـــانه رسي
دزړه لاســونه یې ســوري دي اوکـه څـه کـیــسـه ده؟
دوینـو لپـــه شي غـــزل چې ترکــــاروانه رسي

۱۹۹۶ د مارچ ۲۶ ،دتیکسلااو پېښور په لاره



دخــزان ســیلی دشــپــې له بورا یووړه
لـه ډیوې نـه یې غــوټۍ درنـا یـووړه
هســې هم دکــانوزړونـه ورتـه شنـه دي
زاهـدانـولـه رنـدانـو مــینـا یـووړه
سـره گلخــانګه له آسمـانـه مـاوې راغله
جـنـازه وه دتـنـغــري هـوا یـووړه
په نانځکوکی دیوانـوکــمـین ونیــو
لـه مـاشــوم نـه یی رنگینه دنیـا یوړه
دسـورخولي مـاشـوم لاس په وینو سوردی
دحــالاتـو، تورکــارغــه ترې پاپا یووړه
ډیرورشـیخ می بیگا په خـوب کـې ولیـد
چې یی حـوره لـه شـهـیـدنـه په غـلا یووړه



پکې روان وي تصویرونه دوی یې پښې ماتوي
کـانې رادرومي او زمونږ دسـرښیښې مـاتوي
بـاید خـادم درنـاګـانـو یې پرسـروي یولاس
شـته شپه پلوي چې دوی تل بلې ډیوې مـاتوي

# د عزرا ییل کچکول

زما د ستړي زلمیتوب هره شیبه ،
دورانو ،ورانو لیونو خوبونو غوټه غوټه
چې د تعبیر یوسفي ګوتي یې په خوب کې هم لیدلې نه دي
زما د کلي د پیغلوټو او د پیغلو ،پیغلو نجونو ګودر
دیوه ژوبل او شهید مازدیګري انځورګر
له جهنم نه راغځیدلي د پولادو او داور لاسونه
دزهرو ډک لکه منګور لاسونه
زما د کلي د پیغلوټو
او د پیغلو له سرونو ډک منګي غورځوي
زما د کلي د بامونو او د ړنګو دیوالونو پرسر
کودي کتار کتار پراته لکه د خوارو دعاګانو لپې
چې هره شپه د کشمالیو شنه خوبونه ویني
چې هره ورځ په تشو لپو کې لمبې ویني او رونه ویني
زما د کلي په کوڅه کوڅه کې
هره شیبه عزرا ییل ګرځي دروازې ټکوي

لکه ملنګ دمرګ کچکول په غاړه

دژوند دانې ټولوي

زمادکلي په هواکې دیاسین دآیاتونو ژړاغلې نه شوه

زماپه کلي کې مرګی دېرنوردهرڅه قحطي

دخوشحالۍ دسپینو اوښکو ،دخنداو دسندرو قحطي

دخوب قحطي ده دزخمونو دټکورقحطي

او د دردونو دتسکین نرخونه

پاس له آسمان سره خبرې کوي

دوحشتونوپولادینې پنجې

دلیونیو له ګریوان سره خبرې کوي

خلک په سپینه ورځ دیوېل له زخمونو نه پټۍ پټوي

بیایې پرخپلو پرهرونوتړي

اشناظالم دی هریویادېې کفن کښ جوړشوی

زما دزړه په هدیره کې ګرځي

اوله شهیدوغزلونو مې دسرواوښکوکفن پټوي

۱۹۹٤/۲/۲۰پېښور

اهدا: دنثار صیب لوی غم ته!



*بیگا شپه مې له شمعې له مریم سره شپه وه
یو جل وهلي تږي له شبنم سره شپه وه
حیران یم په خبرو مې هیڅ نه رسیدل
یو دو وعربو ماغوندې عجم سره شپه وه
رباب زما دزړه یې ښه غمګین شرنګا وه
سندرومرورو له ادم سره شپه وه
هرڅوک په لبموکې یې وویښ جهانونه
وم ړوند که مې هرڅو له جام جم سره شپه وه
حیران ومه چې لویه سجده کوم یوه ته وکړم
یوه ماشوم صنم له بل صنم سره شپه وه
دا توره شپه زما په اوښکو نه مړیدله؟
کنه تږې حبشې له زمزم سره شپه وه

پاچا راکړي دي دبر تور آسونه سپین آسونه
څه موبارکړي پردعاخه پرآمین آسونه
داچې ښامار مو د «راتلونکي »نس ته ښوی تیروي
راځئ چې بارکاندو د «حال » په ښکلي بین آسونه
بیگامو وړل دښاپیرو خوبونه دیوولوټل
دذالجناح غوندې په وینو شول رنگین آسونه
ښايي ابلیس وي تښتولي د آسمان له چمن
نن شپه خوبار په رڼا نه وود پروین آسونه
جامې دژوند دچینې واغوستې دزهروچینې
په تږي دښت کې مو دشک ،ځي دیقین آسونه
ځي دباروتو قافلې ،په ورمو بار رانغلل
دگلابونو ،دنرگسو دیاسمن آسونه
خوري دژوند پاڼې په هواځي دوریښمو چینجي*
اوس دوریښمو په لارنه راځي دچین آسونه
سردې له سره پالنگه هسک کړه فتح خانه یاره!
هاردرابیا غاړوکې وړي دشمس الدین آسونه
خورجین خورجین یې دکوه له سپینوسپینو ستورو
دلمروزرلري کاروانه ستا زرین آسونه

تنې دنریزې کلی ،۱۳۷٤ دجدي اوله

*دوریښمو چینجي دچین دیوډول توغندي نوم دی

تلې نه که ورته غشي دبڼو مې رابشکل

څلوړ هوسيو سترګو له مړه رم سره شپه وه

دوه ستوري وو له «شمعې» له «مريم» سره تللي

*«ډيوې» له سوي لوي شومه دم سره شپه وه

بېګامې دغم نوې جزيره وموندله

بيګا مې له سراب او له عدم سره شپه وه

کاروان يمه له زړه نه د «نثار» مخاطب

اروامې دخواږه اشنا له غم سره شپه وه

١٣٧٤/١١/١٤

*پورتنۍ ويرنه په روانو ويلو کې سکته او بې وزني لري، په مترنم انداز کې بې دوزن نيمګړتيا له منځه ځي، نو موږ ويرنه ما په مترنم انداز کې ليکلې ځکه مې همداسې پرېښووده. شمع او مريم زما د ګران ملګري نثار صيب نه کلنې او دري کلنې لونې وې چې د کوټې دراپرېوتو په پيښه کې دواړې په حق رسيدلې وې. ډيوه د شمعې او مريم ترمنځ د نثار صيب بله لورده.



صوفیان یو که دزړونو دهندارو منځ کې کینو
راځه دابدیت دښکلیو لیارو منځ کې کینو
راځه چې ماشومان شو پټپټانی سره وکړو
دښکلیو پاکو پیغلو پرده دارو منځ کې کینو
بانه په زکات ورکړو چې ترې ځالي کړي تیارې
دتورو توتکیو استاکارو منځ کې کینو
خوب ښه نه دی لمونځونه ددیدن په کې قضا شي
راځه چې دځلورو څوکیدارو منځ کې کینو
دزغم نه ده دادرمره بدرنګي هم ددیوانو
یوځه خو به دښکلیو پري وارو منځ کې کینو
په کارده چې دښکلي بغاوت جنډه راواخلو
ښه نه ده چې مړې سترګې داغیارو منځ کې کینو
کاروانه دخبرو له بیابانه کوچ په کاردی
رادرومه چې دمستو سندرمارو منځ کې کینو



تارونه يې چې وړاى شي نونغمې نه دي درنې
پراوښکو، پرښودچاليمې نه دي درنې
چې ستادسترګورنګ لري درنې پر اوږو وږم
داورځې هم درنې نه دي داشپې نه دي درنې
دزړه پراوږو بار دبارملالي سترګې وږم
په ناستوپرښتودچااوږې نه دي درنې
دچاپښوکې يې نه ږدم چې په خاورو شي سپيرې
پرسريې ګرځومه چې سجدې نه دي درنې
ترمرګه يې چې باردرناايښى وي پرسر
ده شمع پهلوانه کمبې نه دي درنې ؟

ورمو دغوټي پښو کې يې شينديږي چې ګل شي ګل
دسويوپتنګانو خوايرې نه دي درنې
شاعر مې کړه شاعرې آسمانونه درنګ را
پرغرونوراخورې سرې زرغونې نه دي درنې
په ملاکې يې درزکيږي دملاپه يونظر
په سروسپينوځونډيوسريندې نه دي درنې
بس باردتوبوکيږده که دې تنده ماتوې
ګنې په غرب شرابوخوپيالې نه دي درنې
کاروان يې له باګرامه ترکابله رسوم
صنمه په تصويردې آينې نه دي درنې

۱۹۹۴/۱۱/۲۵ پيښور



وبادشاهانو ته راتېتې مه شه غرور دفقير
دفرعون پښو کې مه شه رنګ داوښکو طور دفقير
خدايه! په پالي پالي راوله شبنم دکرم
دژوند نرګس کېږي موده چې دی رنځور دفقير
دغيب په کانو مولامات کاندې غاښونه دسپو
دهمت کند مه شه په خپلو وينو سور دفقير
زه خويې غوره دريا له عبادته ګڼم
داچې يې نن شيخ اوملا بولي قصور دفقير
پرښتو تيريې کړئ ترعرشه له شيطانه په زور
د ک د دعا کچکول دې چيرې نه شي چور دفقير
چې دريازاهد، ملاوولي په غشو دحق
رب دې ترخنګ ودروي مست اومنصور دفقير
دزماني قطبه ولي لمن دې نيسي کاروان
دخوست په ښار کې به پوښتنه کړي ضرور دفقير

۲/۷/۱۹۹۶ نريزي، دفقيرانو نيکه دزيارت په خواکې



چې دستورو ، وکاروان لره مهاردی

دمنصور له غاړې چا ارتی دار دی ؟

داوبو په خبر یو څوک به ورته گورم

راشین شوی مې په شعر کې چناردی

تاوې لرې مې لاسونه کړه له غاړې

دپاچا له غاړې چا ارتی هار دی ؟

یوکم سل نومه دخدای پکې یادیږي

چاترلی په رباب دتسبو تاردی ؟

چې بادشاه به یې دشعر سلام ته راشي

دکاروان په زړه کې داسې سندرماردی

# يو پاکيزه خوب

بيگامې خوب ليده

ته وايه ښه دې ليده

خوب کې مې خداى وليده

چې شا وخوا يې پرښتې وې پنډې

ځينې وې ستا په شانې دنګې ځينې غونډې منډې

خوب کې مې ته هم ليدې

د پرښتو منځ کې وې ناسته دنګه سپينه غاړه

ستا په لاسونو کې وې سپينه ځولۍ

له سروسکروټو ډکه

د خدا ى له ښکلي مخ نه

د نورباران وريده

په هريو څاڅکي کې يې

د غزلونو سمندر بهيده

خدای راته وکتل او وموسیده
بیا یې راغبرګ کړچې ته دلته راشه
په سندریزغبرګ کې یې څومره کیف و
لکه سوره درحمن
زه خدای ته ورغلم سجده مې وکړه
بیا یې دوړانګو په لاسو کړم له سجدې ورپورته
پټ یې په غوږ کې راته څه وویل
د پرښتو په منځ کې غلی غلی درغلمه
ستا په څولۍ کې هغه سرې سکروټې
دخدای دنور له څاڅکو ،څاڅکو سره ما وخوړې
اوس راته وایه ددې ښکلي خوب تعبیر به څه وي ؟!

۱۹۹۳/۲/۷ پېښور





*ملونځ مې يې کافربه شمه څنګه دې قضاکړم
راشه چې دخپل زړه په خلوت کې دې ادا کړم
ته دقدر شپه يې خو په شپو کې رانه ورکه
تاپسې به ډيرې اوږدې لنډې شپې رڼاکړم
غشي راکوه چې اژدها په تندي وولم
موسکه راته مه کيږه چې ننبه به خطاکړم
زه هغه مجنون يم چې مې زړه خوره کيږدی کړ
ګورې به ليلابه له وچ ډاګه راپيداکړم
دين د پښتونغښتی دملالې په تپه کې
دادتپوژبه به له خدای سره آشناکړم
ډول به شم ،اتڼ به شم ،شغا به شم دڅنو
بيابه طالبان دجوماتونوپه ګډاکړم
خاورې يم خو لمربه ترلاس ونيسم که خيروي
ستورې به شم پاس به له سپوږمۍ سره خندا کړم
بيابه دغاړولو دغه لوټ کاروان راټول کړم
لاس به پر سپړلي واړوم زربه يې پخلاکړم

*ته راته سباسباکوه زه به بيګاکړم« حضرت حمزه شينواری »

# دشعرونو سیمرغ

نظري لوند په اوښکو لاس يوسي
دزره له غره نه مې الماس يوسي
عشق راته رام کړ دشعرونو سیمرغ
له آسمانونو نه مې پاس يوسي

# ژوند

دوچووچوچنارونو وچه پانه ده ژوند
دغره بلبل وږي مښوکه کې ممانه ده ژوند
دباز تصويرورته په لاره کې په بريد وي ولاړ
له خپل کتارنه راوتلې ورکه زانه ده ژوند
اخرېې واګې دمرګي دسپور په لاس کې ورځي
که هرڅوهرڅو په درنجکو لکه بيانه ده ژوند



پسرلی شه دبلبل پرتېپي غږدې
دپستو پستو گلپانوپټې کیږده
غلې راشه اوزما دزړه په تاخ کې
ددنیا له نظرپټه کوکې کیږده
چې سندرې مې راشنې شي له خبرو
پرسپیروشونډومې تانده ځولگې کیږده



له گډاو له سندرویې ټول جوړدي
دچنارله غټې ستنې یې دول جوړدي
ستا دسترگو له عظمت نه غرودان دي
ستا دسروشونډو له سیوري غاټول جوړي
دامې زړه دې دنظرنذردې غواړي
داچې ماترېنه دغاړې کچکول جوړدي
داچې سترگې جنگوو غلې ولاړیو

دا په داچې بې وزنې نه شته تول جوړدی
شپه اوورځ په کې دوريو داړې کيږي
خوشپون وايي هيڅ کيسه نه ده شپول جوړدی
په آسمان کې يې سپين ستوري غرغره کړل
چې پرځمکه الواني وينو زول جوړدی
په خپل زړه کې مې ارام نه شته کاروانه
په دې سرای کې مې سندروکهول جوړدی

۱۹۹۷ دمی ۱۱ پېښور



# يو گل ته خطاب!

گله تا نه که شوم هېر گلونه گورم
ستا په یا د کې بلاډېر گلونه گورم
موسمونو ستا رنګونه دي غلا کړي
په هرلوري ستا په څېر گلونه گورم
د کابل د میلمنو نرګسو وار دی
ته وا تَل به د کستېر گلونه گورم ؟
د ګلونو بغدادی سیپارې لولم
شد په پښې په زور په زېر گلونه گورم
چې شملو ته تلی شي پښې په اغزو ر دی شي
پښتانه له سره تېر گلونه گورم
چې ګلپوش مې کړي د ژوند د شهید قبر
پسرلو سره بې شمېر گلونه گورم
نه چې تل به د ګلاب جامونه ښنمه
تږې زړه ته د ګنډېر گلونه گورم
د غا تېولو لا روې راتېولومه
مست کاروان یمه چاپېر گلونه گورم

# اخبار لوستونکې ته!

تاچې دخپلې ځوانۍ ګل
دخپل تازه معشوق دمېز دپاسه
لکه سوغات کېښود
دکبرجن ملنګ په څېر دې ،
دپاچا مخکې زکات کېښود
مومن تندی دې چې په پښود سومنات کېښود
تاچې دخپل نوي تازه معشوق دمخ په اخبار
ددې خاورینې ګلورینې نړۍ
د ،راز وړې غنچې سُرخې کتلې
په دې سُرخۍ کې به دې خامخا لوستلې خووې
دخپل ښاروان له لاسه
دیوه کاروان دلوټېدو افسانه
غاړه دې خلاصه راته ویې وایه
چې دماشوم زړګې مې
اوړ دوخوبونو ته زړګی شوی دی

۱۹۹٤ پېښور



دشعرونو سوداګرې ،شرابي غزل په څو دی؟
دالهام پرخې پريولى ،ګلابي غزل په څو دی؟
زړه مې بيا ددرد په لاس کې ،دزخمونو سکې راوړې
ستا دبرندو برندو سترګو ،عقابي غزل په څودی؟
دپرهر په رغېدو يې ،نوش دارو چې پاتې راشي
ستادعشق رستم ژوبلی ،سهرابي غزل په څودی؟
چې مسرې يې نهنګان شي ،مستې مستې حملې وکړي
چې څپې څپې راخورشي ،دريابي غزل په څو دی؟
لکه ستوری چې له ستوري ،سره وجنګيږي مات شي
چې يې توري داسې رپي ،سيمابي غزل په څودی؟
دلبمو له خانقايې ،صوفيانه غزلې غواړم
داسې چيرې هم نه وايم ،وهابي غزل په څو دی!
مادې نوم په سپينو اوښکو ،پرژيړي نرګس ليکلی
نرګسي غزل په څو دی ،شين آبي غزل په څودی؟
چې شعريت په کې موسکی دی ،چې کاروان يې په ياد وايي
ستا دمخ دسپينې پاڼې ،کتابي غزل په څو دی؟



راته موسکی دی څه په ناز ناست دی
ښیم یې نه خو لکه راز ناست دی
پکې پنجې وهي نوکارې وهي
څوک مې په زړه کې لکه باز ناست دی
لا په لټون یم لا مې ونه موندە
دچا په نوم مې چې آواز ناست دی
چې هره لاره دیار کلي ته ځي
په هره لاره کې غماز ناست دی
په کې کاروان ودکابل درنګو
څه که باګرام کې غزلباز ناست دی



کارمې مونډلی دی په کارپسې ځم
لال رانه ورک دی په ښامار پسې ځم
چې بیا د ښکلیو په خوله هیڅ رانه شي
وژنم یې توري دانکار پسې ځم
دزړه دیوه انار ډالۍ ورته وړم
دهغو دووسترګو بیمار پسې ځم
زه لیونی یم ښاردې ما پسې ځي
هوښیار خونه یم چې په ښار پسې ځم
چې لکه ستوری یې په غیږکې مړشم
زه هره شپه په ورک سهار پسې ځم
سنګ پارس مې سیند ته وغورځول
ښه لیونی یمه په یار پسې ځم
دیوې رنګینې ګناه نیت مې کړی
سرمې تالی غواړي په دارپسې ځم
دسپین واعظ تورې خبرې مې خورې
دشنو بنګړو په شرنګهار پسې ځم
زه ددردونو دکاروان لاروی
په یوه ښکلې سندرمار پسې ځم



لمرېبه زرين زرين قـــدم راشي غنم پخـــوي
مـــينه دزړه دننه پټ كـــرلی غم پخـــوي
بلبله! صبـر دې په خـدای شـه دبيلتـون دشـيبـو
بس دغـوټی د پيـغلتـوب شـيبـې شبنم پخـوي
دظالم سـربه هم لوگی کـړي ځـوک له دردہ خـمـار
لکه چرسي چې خــمـــارمـــاتي ته لړم پخـوي
گـــوندې رنځــوره زمـــانه پرې لږه ځکه وکـــړي
کاروان وريتې وريتې غزلې په قلم پخوي



تصـــويردې واغـــوستـــې رنبې اوجلوه دارې جـــامـــې
زمـــادزړه په شـــيش مـــحل كـــې دهندارې جـــامـــې
دبخت پرتخت كـيناسـتـې وخت به دې غـلام شي غـلام
زړې به نه كـــړې ځـــونډورې او گلدارې جـــامـــې
شـه مـبـارک دې زيری دوې پيـالې مـوسکا غـوارمـه
ستـرگـو دې واغـوسـتـې گلگونې اوخـمـارې جـامـې

حسن چې ستـرګـې سـتـرګـې شي لکه لبـاس دطاووس
خـدای کـړي دعـشق له سـيـپـاروورته تيـارې جـامـې
خلکو دخـپلو سـتـرګـو داغ دی پرجـانان اغـوسـتی
پاک دی غـا تېول څه که سپرلو ورکړې داغـدارې جامې
ګل مـې دتندې په بيـابان کـې کـه شي مل دکـاروان
ورتـه داوښکو پـه بوخـڅـوکـې وړم دلارې جـامـې

۱۹۹٤دمی ۲کنال رود پېښور





تیشه مې لاس کې ده په کانړوکې صنم لټوم
په ورک جنت پسې هرګوټ دجهنم لټوم
ستا په نامه مې خوله خوږه شي څه خوشته دي ګله
زه چې دزړه دننه پټ اسم اعظم لټوم
تندې اخستی یم سراب او دریاب نه پیژنم
ورځم دتندې په جیبونوکې زمزم لټوم
وږی مارغه دي کړم وزرې دهوس دې راکړې
اوس دهر دام لاندې دانه دانه غنم لټوم
خیال مې تاوکړی دهلال پرڅوکو ول دڅنړو
په وچو څانګوکې مارغان دزیروبم لټوم
خوشحالي شه ده آشنا تل اوسې خوشحاله خوزه
چې خوشحالي یې شي غلامه داسې غم لټوم
ماشوم آشنا په پټه پټهانې کې بلا بلا دی
نه شي موندای پسې جومات پسې حرم لټوم
دشپې رانجه پرې چانوشلې دي دمینې په تور
له توربلبل سره نغمې دسپیده دم لټوم
راته غزل دې کړل زرین سنګ پارسه یاره
اوس به کاروانه نه دیناراونه درهم لټوم



په غرونو کې نښتروي او په کلي کې چنار
په زړه کې مګر ځانګې ځانګې وغځيږي يار
زلمي زلمي خوبونه به دې غيږه کې شيندم
که وخت دې چيرته وغځوي ګونځې په رخسار
په سر کې لکه غريوسي ګلونه د جلال
له کوم سرنه چې ول تاوشي د دار لکه دستار
راوغځوه لاس لکه د کوچو غوندې سپين
د تورو وينو ډک زړګی مې دی پرهار پرهار
اعجاز دی د نغمو ګني نوځنګه به يې وړای؟
دادروند د غمو بار پرنري تار تار دستار
بيګامې توتکې جوړې جوړې په خوب ليدې
کيداې شي ګډشم نن د تورو سترګو په بازار
نن خوند کوي چې سورسالو اور بل کړي پرګودر
پرون خوند کړو اورونو دروسانو پرکتار
ورځه وريسې راوله شبنم غوندې طبيب
غزل دې شو کاروانه د نرګس غوندې بيمار



دشعر گونګرو لړه مابیا مستانه شرنګ ورکړ
دزړګي للمې ته مې خدای باران دبنګ ورکړ
واعظه غلی شه دازړه رانه په بله لاړو
هاغلته لرې یوچا بیا بنګړو ته شړنګ ورکړ
دپاچالورمې دخپل زړه په پاچهی کې لیده
یوه ملنګ ته یې دسپینې خولې قلنګ ورکړ
دښکلاخدای دپښتنې تنډې ته خال ورکړی
خوسره غاتول ته یې دداغ په نامه زنګ ورکړ
داوښ دسترګوغوندې ښکلیو ځلیدونکو تورو
کاروانه ستا ودې ساده غزل ته رنګ ورکړ

ثور۱۳۷۶ پېښور



دزوروراوبه په بره خېږي
دزړه په زورخولې ته سندره خېږي
سپينه تناکه مې په زړه جوړيږي؟
که دوطن پريام کوتره خېږي
ګل يې شاعردخيال غنچه کې کېښود
خولاورمې يې له انځره خېږي
دسترګوجنګ زړونو ته مينه راوړي
داداسې خيردې چې له شره خېږي
دزړه په پښوکې ځي اغزي دکاروان
دګل ريښې يې له باوره خېږي



چیرته ما دچاپه نوم ده دعا کړي

دزیارت زرو کوترو ګدا کړي

زرقبولي دعاګانې ترې لوګی شه

ښکلي یار راته یوه ښکلې ښیرا کړي

مرغلره دورغوي ،دهنرشوه

ګني داخبره څوځله تا کړي

توري مستې توتکی دې بهر ګرځي

توروستر ګوځاله زړه کې زما کړي

په رنځولړلې اوښکې دې پرې څښلې

ګني ستوروبه وای ډیره غوغا کړي

شپې وهې کاروان ګلونه را راوان دي

دسحربلبلې داسې وینا کړي

دجرس حاجت کاروان ته پاتې نه شو

شنوبنګړیو دې وه مسته شرنګا کړي

۱۹۷۹دمی ۱۲ پېښور



ما زدي‌ګرستا د پېزوان جامې اغوستې؟
که مې زړه وي دارمان جامې اغوستې؟
ورته ګورم په لېدو يې نه مړيږم
تنهايي مې دجانان جامې اغوستې
دموسکا په لمردې تول دبودۍ تال کړم
ما داوښکو دباران جامې اغوستې
رنګين زړه مې درپسې شو سترګې سترګې؟
که طاووس وي دقرآن جامې اغوستې
شنو اوبو ګسې يې دمخ دستوري رپ دی
چا دشپې دشنه آسمان جامې اغوستې؟
دبيلتون له بريدنه ښکليو ته ورګوري!
ورتلی نه شي تا دځان جامې اغوستې
دګلونو انقلاب په پرمار اشه
ما دو پنو دالوان جامې اغوستې
پردې لاره دپرهر لاروي تلې
سروغا تولو دکاروان جامې اغوستې

پېښور، ثور ۱۳۷۶



رابانديږ بيا دناليدلي خوب تعبير خوڅوي
وخت مې په سترګو کې لشې وهي شبوګير خرڅوي
دآزادۍ په توريې تورکافر بللى يمه
پرمادمار دغاښ په شانې سپين زنځير خرڅوي
دخپل پاچادې پردي توب ته حق حيران يمه زه
چې پرپردیو پياده ګانو مې وزير خرڅوي
دخوشحالۍ سکې يې تولې رانه واخيستلې
زمانه وګورئ په زور رابانديږ ويرخرڅوي
زمونږ دزړونو له هندارونه يې غلاکړې ده
چې دايمان دښاپيرۍ پرديو تصوير خرڅوي
ښايي خوندونه دکبانو به پيکه پيکه وي
دزړه پر کب مې چې چنګک دماهي ګير خرڅوي
چې دمغروره سلطان مرګ يې په تعبيرکې ويښ
وخت له الهام نه دګ خوبونه دفقير خرڅوي

پېښور، ١٩٩٦/٤/١١

# د یوه مرور ستوري په وير

لمراوده دی له مداره ستوري وځي

له ماښامه ترسهاره ستوري وځي

ګرنګونه مړه دي غرړ د*پژواک نه شته

ننګرهاره ستا له هاره ستوري وځي

ژوند مفلس دی مرګ يې وړي په نيمه بيه

دبې قدرو له بازاره ستوري وځي

پولادي غشو لاسونه را اوړده دي

وينې نه دي له پرهاره ستوري وځي

په زرينو تابوتونو کې يې ميخ دي

دوطن په هره لاره ستوري وځي

پرديارېې بادشاهي داهريمن ده

نه دي ګرم چې له دياره ستوري وځي

لکه ورک لالونه بيا يې موندل ګران دي

چې له ژامې دښاماره ستوري وځي

دسپوږمۍ ساقي په غيږکې يې درنيسه

مرور دي له خماره ستوري وځي

سترسالارېې دمرګي شوکمارو ونيو

کاروان لوټ شو له مهاره ستوري وځي

*اروانباد استاد پژواک---۲۳/۳/۱۳۷٤ پېښور

شاعر یمه اومینه مې توده دلمر په شان
جانان په غیرکې نیسم دساړه سحر په شان
د درد پیغلوته نجونومنگوتې داوښکو راوړل
په سترگو کې مې زړه شو دجارې گودر په شان
زما دتخیل په ذاالجناح غشي وریږي
شیطان له خندا شین دیزیدي شمر په شان
بدرنگو دطلا په غشو وویشتو په خپله
ایمان په وینو سور دی دزخمي کوتر په شان
بې رنگ یمه گلرنگ غواړي گلپانړو ته رنگونه
موسکی یمه له درده دتنکي پرهر په شان
زما بتگره خیاله ترینه بت دجانان جوړکړه
داروح خومې لږ وتراشه دسپین مرمرپه شان
چې وینې دې کاروانه خُسروانو ته شي زهر
ستا سر په تیشه مات شه دفرهاد دسر په شان

پېښور، دسمبر ۱۹۹۳



عزرایيل غوندې مې روح له بدن یوسي
راشي لاړشي رانه لمر د دیدن یوسي

کفن کښې خیال یې دزړه قبر ته راشي
له شهید غزل داونښکو کفن یوسي

پرهرژلوته مالګینې نغمې وایم
چې زګیروي وکړي زخمونه زولن یوسي

ځیګرخون مې دغاټول غیږ کې راټول کړئ
نه چې باغ نه کوم بل داغ په لمن یوسي

دنغمو خدای ته به ډیرډیر شرمنده شو
دبلبل ځالې که زاغ وزغن یوسي

ستادسترګو ګلفروشې مجنونې راغلې
ډیرګلان به مې دزړه له ګلشن یوسي

چې وتاته په بدرنګو سترګو کسي
دواړه کسي اولېمه دې لېچن یوسي

کاروان څله دومره سوې غزل وایي ؟
چې یې روغ واوري زړګي لوغړن یوسي

۱۹۹۳ پېښور

# نرخ

بس تش يې داوويل:

ــ ځواني يې ډيره لوړه

اوماپوښتنه وکړه:

ــ لکه زمونږ دکلي

دنجونوميره هغه دنگه هغه لوړه پيغله ؟

بيا هم موسکی شو ،

وې يې نه نه له هغې نه هم څوواره لوړه

اوماپوښتنه وکړه:

ــ لکه زمونږ دکلي سروه اويادنگه دجومات مناره ؟

بيا هم موسکی شو ،

وې يې نه نه ته ونه پوهيدې

مابيا پوښتنه وکړه:

ــ لکه زمونږ دغرونو ،

ترټولو هسکه څوکه ؟

دکاندارشين شو له خندا ويې وې:

ــ ته لاخبرهم نه يې ؟!

چې دتسکين دنرخ ځواني آن ترآسمانه رسي

مادزخمونوپه ورغوي کې ددرد په گوتو
پټه تبجنه سکه
چې دژوند نوم ولگیدلی دسکې پرسینه
ددکاندارپه یخ ورغوي کې په ورو وروکیښوه
شرنگ یې چاوانه وریده.

۱۳۷۲/۱۲/۲۹نریزې ،دسیندوکې غرونه



له پښــومــــي دتصــويرد کلي لاره ښــويـيــدلې
په کــــانوکــــي بيگارانه هنداره ښــويـيــدلې
خــاونده !داســي وخت به په نژدې مــوده کــې راشي ؟
چې پورته افــغــانۍ وي او کلداره ښــويـيــدلې
محبوب مې ورته غشي ايښي سم غاښکي په غاښکي
دلال رنها لـه ژامـــې دښــامــاره ښــويـيــدلې
شــاعــر په هوش کــې نه ودغــاتول په باب يې داوې:
ســره وينه دهوســيــو له پرهاره ښــويـيــدلې
داپورې پسرلی کومه غونډۍ په غيـر کې نيسي ؟
کــه بار په گلواوښــه له مــهــاره ښــويـيــدلې ؟
غـدۍ دعشق دستـورومــې راتاوه له سپـوږمــۍ کـړه
ديکه يې کــړه دعــقـل له مــداره ښــويـيــدلې
کــاســي دغـزلـتوروېي دخــيـال له مـيـوړ کــې
کــاروانه نن دې طبع له خــمــاره ښــويـيــدلې



ســروغــاټولومــواغــوســتي، پرهرونه درمُـــان دي؟
اوکـه ورونږو را ایسـتلي ،سـترګـي سري دشـاه زمـان دي؟
خـــدایـه رایـي شـــــه دیدن تـه، دیـارانـو نذرواخلـه
داســرغــوڅي لیــوني مــــي ،څي دزړه په زورروان دي
ګــواښیــدلي ګــوریتــان دي، دښـامــار په غــوښو پـایـي
چې آواز ددلبـرواوري، خــوري شکري شنه طوطیــان دي
دوطن آنـدام ،آنـدام مـــــي ،دپـردوچړو خـــورا ک دي
شـاه زلمو کـفن په سـرکړئ، بیـا شـیـبـي دامـتـحـان دي
بیــا دذهن اصـــفـــهـــان یي ،پروني خـــبـري هیـري
بیــابریښنا دتورو ورکـړئ، بیــا وخـتـونـه سـودایان دي
دقـــاتل لاســونـه پري کـړئ، دمـــلالي تېـــي وژني
شـــهـــیـــدان یي آیاتونه ،دکـــوثراو درحـــمـــان دي

دکــبرو خــولی ســرونه ، په کــبرو غــشــو ورسم کــړئ
په کــبرو سعرو کــې ناســتــې ،کــبرې ډلې دشــیطان دي
په پســـتـــو یې غلط نه شئ،په خـــوږو یې غلط نه شئ
پردي پاک نه شــتــه ناپاک دي،دایران کــه دتوران دي
تورد یوان یې ســلامي کـــړل ،دښکلاو ښــا پیـــرۍ ته
غـــزلتـــوري دکــاروان دي ،کــه غــمي دسلیــمــان دي ؟

تني ،نریزې دسیندوکې لمن / ۱۳۷۶ دسرطان ۳۰





لاس دې راکړه ستا په لاس کې مې ژوندون دی
ستا په لاس کې د کاروان د مینې یون دی
ستا په لاس کې د سپوږمۍ د رڼا مراندې
ستا په لاس د سپینو ستورو پیوستون دی
اور دې ګوتې دې دوړانګو سپیدارونه
په ورغوي کې دې لمر د سباوون دی
غیرت راشه چې د شونډو شعر دې ښکل کړم
ستا باګرام خو جمهوریت د افلاطون دی
چې دې راکړه امانت د مینې زړی
اوس یې چیرته وړې په زړه کې مې زرغون دی
ما شوم عشق دې کړه راویښ چې لږ مشغول شي
پرې شل شوی مې دستړي زړه ځنګون دی
ګیله مه کړه که نازک غزل یې نه زده
ستا کاروان خو د شډلو غرو پښتون دی



راته وايي له مـــــالـرې زه ديـاريم
خلكو دومـــره پردې خـــپـل زره باندې باريم
بلبـلان مـې اوس په سـركـې ځـالي نه كړي
اورمـــې واخــيـســتـو دبر كلي چناريم
دزړه يولال يم خـو خـولـه په خـولـه يې گـرځم
ولجـه كـړى اووه سـري لوى ښـامـاريم
دباران طبـيب دخـداى په غـيـر كـې پروت دى
زه غـــريب نرگس له تندې مـــرم بيـمــاريم
دشــيــخـــانو پاچهي ده چې چوپ چوپ يم
گــنــي زه هـم د ادم دربـــاب تـاريـم
چې ديوان دبدرنگۍ راته گـــوابــيــرې
زه دښكليـــو ښـاپيـريو هغـه ښـاريم
مــاچې ســوځي خـپـل هډوكي يې ايره شي
خــبــــردار! زه دكــابـل دزره ازاريم
يوكــاروان دتصــويرونومــې لوټ شـوى
خـــولاوس هم دهـنداروخـــريداريم



لبـــموكـــې يې داوښكودګل پاڼې مـــيلمنې دي
دژوند مـلالې سـتـرګـې مـې ناجـانې مـيلمنې دي
مـودې وشـوې آسـمـان ترې د پولادو شـاهين تش دی
باګــرام كــې د كــابـل كــوترې ،زانې مـــيلمنې دي
چې خواوې يې جاروكړې كوربنې جينكۍ څه شوې ؟
ســپــرليــه ســبــرونې اوبيكيــانې مـــيلمنې دي
ژوندون مـې لكه سـتوری چې هم خـاندي اوهم ژاړي
شـيـبې مې شـفق رنګې اوڅـه سكانې مـيلمنې دي
يـرغــــه به شي كــــاروان به دارمـــــان پرلارو يوسـئ
دانـن كــه مـــې غـــزلې وړې بيـــانې مـــيلمنې دي



خـــوا ږه دردونه په کـــېږ ثـــه نري نري راځي
د يومـــې ايســـتلې دی له زړه نه اوس پري راځي
يوې ســـپـــوږمۍ ته له سندرو نـه جـامـــې جــوړوم
له ســـپـــينوســـتـــورونه تارونه زرزري راځي
کــه يې په غــشــو باندې شنه خـالونه ونـه ويشـــتل
بس طالب جـــان به کـــابل جـــان تـه په بري راځي
وي دليـــوانو پنجـــې مـــاتې اوغـــابـــونه يې توی
خـــوب مـــې ليـــده چې په درنجکو بانـدې ورې راځي
بوی دلـــونگـــو دکــــــاروان لـه غـــــزلـونـو راغی
که پيـــغلتـــوب دی پرغنچـه غنچـه ببـري راځي

۱۹ د ســـــتـــمـــبـــر ۱۹۹۵

# دشعر د آسمان يوې پروين ته !

دسندرو پرښته ده ،په غمونو کې خندانه
ځي رائحي له داغستانه ،په زخمونو کې ودانه
د « تبجنې » سپوږمۍ خواکې ،« د پروين »غوندې موسکۍ ده
ليونۍ ده ليونۍ ده ،شپې رانيسي له گريوانه
غزلگره هنرمنده ،ماتوي په غزل تنده
پيمانه د ژړه يې ډکه ،سرتر پايه له يزدانه
وير په زيروبم کې نغاړي ،يو باد وړی نرگس غواړي
لاهوتي زخمي بلبله ،مروره له آسمانه
ستر پاچا دشاعرانو ،دسندرو جهان ورکړ
ورکه ورکه په جانان کې ،ورکه ورکه ده له ځانه
دغزل دښکلي مصر ،مقدسه زليخا ده
د « ملال »يوسفي ميني لرې يووړه له کنعانه

گرانې خورپروين ملال ته!



انځور ګر ستا له انځور پس له قلم لاس واخیست
ستا وسلام ته ګل په پور د شبنم لاس واخیست
اول مین و، دویم ښکلی وا وچل یې وکړ
اول چې لال د زړګي ورکړ دویم لاس واخیست،
چې څو مره تلم پسې منزل مې اوږد یده اوږد یده
د ژوند له ښونه مې قدم په قدم لاس واخیست،
ته د ښکاریانو له لاسو غشي لیندې راواخله،
نو په دې پوی شه چې هوسیو له رم لاس واخیست
په تورو سترګو کې یې ستا اسم آعظم کتلی
چې هر کوډګر له تاویزونو له دم لاس واخیست
د کوم شاعر دیوې شاعرې شیبې رنګ مې ورکړ
که د ژوندون له سرې سکروټې مې غم لاس واخیست
چیرته کاروان د غزلونو، له باګرامه تللی؟
چې له تارونو د رباب نه ادم لاس واخیست

# له ټولو نه مننه

دچنار خبرې کوې په چاپ کې د بي بي سي د پښتو څانګې کارکوونکو ګرانو مشرانو ګوهر رحمن ګوهر صيب، کمال بهزادي صيب، ګرانوورونو شيراغا کريمي، محمد زاهد، امان الله، ګرانو خويندو صفيه حليم، سعيده محمود، لېمې جانې، ګران ورور ايمل جان او په جرمني کې اوسيدونکي افغان شاعر او ليکوال ګران اکبر بري مرسته کړې، له دوى ټولو نه ډېره ډېره مننه. زما ګران ورور او د پښتو ادب مخلص خدمتګار اسدالله جان د کتاب خپريدل او پر کتاب باندې د پرلګښت په خپله غاړه اخيستى چې د مينې يې پوروړى يم. له ډېر ګران عبدالحى سحر نه مننه چې د چنار دانه دانه خبرې يې د کمپيوتر له پاڼې راټولې او د کاغذ پر مخ يې ځاى په ځاى کړې. ګران دوست او د هيواد ښکلي انځورګر خيال اريوبي په خپلو هنرمندو ګوتو د کتاب پروزر انځور کښلى او زما د کتاب سينګارېې کړى، خداى دې يې په قلم او ګوتو کې د ښکليو انځورونو د پنځولو زورزيات کړي. د هيواد تکړه خطاط ښاغلي قمرالدين چشتي په خپلو مهينو ګوتو د کتاب نوم او د اهداء توري ليکلي دي چې په مينه مېنه ترې مننه کوم.

## دناهید کتاب خپرولو مؤسسې له خوا خپاره شوي ادبي اثار

| | |
|---|---|
| ۱-سا ړه بادونه: | داسدالله غضنفر دلنډو کیسو مجموعه |
| ۲-تبجنه سپوږمۍ: | دپروین فیض زاده ملال دشعرونو مجموعه |
| ۳-څلورمه لار: | دایمل پسرلي لنډې کیسې |
| ٤-زموږ د کلي پانې: | دزرین انځور لنډې کیسې |
| ٥-دلته لږ زموږ او ر ، بل دی: | په لندن کې دمیشتو پښتنو لیکوالو دلنډو کیسو ګډ جونګ |
| ٦-ماته شپېلۍ: | دنازک خیال شاعر استاد محمدصدیق پسرلي دغزلونو غونډ |
| ۷-له نرګسه تر نرګسه: | دکاروان کیسې |
| ۸-سپینې پاڼې : | دپروین فیض زاده ملال دلنډو کیسو مجموعه |
| ۹-مات غمي: | دعبدالهادي هادي دشعرونو مجموعه |
| ۱۰-دنکریزو پاڼه: | دباز محمد عابد دشعرونو مجموعه |
| ۱۱-شعر پېژندنه: | دارواښاد استاد روهي اثر |
| ۱۲-ډیوټ: | دګوهر رحمن ګوهر دشعرونو غونډ |
| ۱۳-چنار خبرې کوي | دکاروان دشعر مجموعه |



## د کاروان چاپ شوی آثار

له مابنامه تر مابنامه (د شعرونو لومړی مجموعه)

له نرگسه تر نرگسه (لنډې کیسې)

چنار خبرې کوي (همدا اثر)

چاپ: دانش کتابخانه، دهکی نعلبندی، قصه خوانی، پشاور



دشپې له جنګ نه يې بری راوړ
لمر په ولجه د نور ،وری راوړ
پسرلی سم دم وبس لاس دعيسې
له مات کودي نه يې ببری راوړ
ترینه تو يیږي څاڅکي څاڅکي دیدن
که مات کچکول ته چا پتری راوړ
په کې امېل د تخيل دغاړې
دغزل زانې کتوری راوړ
نن تلوسه زما هوسۍ هوسۍ شوه
نن يې په سترګو کې زمری راوړ
کاروانه اوس دې مبارک شه اختر
آشنا دسترګو اختری راوړ



ستا په ستورو کې آسمانه زړګی نه شته
توزې شپې دې یو روښانه زړګی نه شته
پرې ګلګون دې هر یو لال کړ ها ،دې هېر شول
ذرومه درومه بدخشانه زړګی نه شته
دموسکا په یوه سکه دې رانه واخیست
ښکلیه دومره په ارزانه زړګی نه شته
ګوهرنه دې سپیني اوښکې دې شوم نه یم
شته غمونه خو ګریوانه زړګی نه شته
تشې لپې تول غاتول تېرې ولاړدې
ښکاري ستا ګوندې بارانه زړګی نه شته
کوم بل کلي ته په کډه مهاجر شه
شي چې مېشت په کې ارمانه زړګی نه شته
کناري مې په پنجره کې بندیوانه
په تېرکې مې کاروانه زړګی نه شته

۱۳۷۶-ثور-پېښور



تامې کړی دی دزړه پر دیوال سیوری
ما نیولی دهُما دی په جال سیوری

په پلو کې دې سپوږمۍ اوستوري راوړل
شوې زما دتورو شپو دمشال سیوری

زه دقال په جهنم کې لولپه یم
دخدای دوسته پرما وکړه دحال سیوری

دکمان لاسونه مات شه چې یې واخیست
دماشوم کبلي له سر دغزال سیوری

پردې دښته دکوم ښکلي کاروان لوټ دی
چې غاټولو هم ترې پټ دی دخال سیوری



تصویر پسې دې ښکلیه بې کرارې ګرځیدې
د کاڼو په رګونو کې هنداري ګرځیدې
بیړیو د رېسې سمندرونه لټول
پر غرونو اوښتې درېسې لاري ګرځیدې
سپین مخ دې رپیده لکه جنډه د مسلمان
پرسر یې که لښکر زلفې کفاري ګرځیدې
راځه په کې زمادوینو وکره ګلان
د حسن رڼې توري دې آبداري ګرځیدې
قربان یې شم سندرو مې دردونه ښکلول
دازره کې مې دچا خوږې نوکاري ګرځیدې



راشــه د رحــمت بارانه ښــار اخـــستی اوردی
ژوندلکـه دکـلـي دچنـار اخــــســـتی اوردی
راشئ زمـــا اوښکـي ورلـه يوسئ بلبـــلانـو
ســـوځي درنه ښکلي لالـه زاراخـــستی اوردی
نه يې دچالاس لکه امـــېل لـه غـــاړې تاوشـــو
غـــاړه کـې يې خـپل دغـــاړې هار اخـــستی اوردی
وچې شـــونډې گـرځئ بدبخـتـــانو مـــيخـــوارانو
اوښکې دانگـور وســـوې انار اخـــستی اوردی
لرې شـــه لمنه به دې وســـوځي طبـــيـــبـــه
پرې يې بږده چې څه کـيږي پرهار اخـيستی اوردی
مـــاوې گـــلابي جـــامـــونه راکـــړه راتـه وې يې
واروکـړه تلوار مـــه کـړه ســـتـــا وار اخـــستی اوردی
ســـوې د کـــاروان سندرې چا په زمـــزمـــه کـــړې ؟
گـــوتې دمطرب وســـوې شـــاتـار اخـــستی اوردی

پېښور ،دعنايت الله ضيا صيّب دوی کلی ۱۹۹۵/۱۲/۲۹



بنګ لونګ شي د ملنګ په خوله دم کیږي
د ګل ځانګه مې غزل ته قلم کیږي
وایم تړي ده هغه د ګلو لښته
ډک زړګی مې بس منګی د شبنم کیږي
یاغي سر رانه د ښکلیو پښو ته یوسي
په هر چامې چې ګومان د صنم کیږي
ستا دیاد، دلمانځه نیت مې دی تړلی
اذانونه ستا د کلي د چم کیږي
د کاکا صیب لمنه د شپې نیسم
صبا ګورم چې یې څومره کرم کیږي؟

تصــوردې د درخــو لبــاس اغــوســتی
شــین په خــیال کــې مــې رباب دادم کیــږي
ســبــاراشـــه یوه ورکـــه په کــې گـــورم
دواړه ســتــرگــې دې جــامــونه دجم کیــږي
پــرزیارت یــې دډیوو کـــــاروان ولاړدی
پر لمن بــه یې نن ولــې تورتم کـــیـــږي
دکاکاصیب دزیارت په لمن کې ماښام
۱۹۹۵اپریل-٤-



زړه مــې دمــات ســتــورى ټوټه ده مــدار هيڅ نه لري
هر څــــه كــــه ولري هم هيڅ دى چې يار هيڅ نه لري
مونږ خــو په زړونوكــې دســتــورو ډک آســمــان كــرلى
دخلكو زړونوته حــيــران يم پرهار هيڅ نه لري
زمــونږ په ژوندكــې يې غــاښــونه مــات دي زهر پاتې
افــســانې داســې اووه ســرى ښــامــار هيڅ نه لري
ديوه داســې صــوفــيــانه نظام په تمه يمــه
چې هر دويم تــن يې منــصــوروي او دار هيڅ نه لري
دمــلالۍ دټپــو ژبه مــې ټپي ټپي ده
بې له خــوشــاله گــوندې بل پرســتــار هيڅ نه لري ؟!
گل هم په يوه پښــه ورخــتلى دى دخــداى په توكل
دښكلا داســې غــره ته خــيــژم چې لاره هيڅ نه لري
كــاروانه وســپــېږه دخــپل زړه لونگينه غــوټه
جــونې ځــوندې نه لري ،غــاړې يې هار هيڅ نه لري
هغــه چې ځــښلي يې ځــاښــتــونه دكــاروان دغــزل
ددرد لــه كلي نه خــبــر شــه بيــمــار هيڅ نه لري

۱۹۹۷/۲/۲۷ پېښور ،ناصرباغ نوى كمپ



مرهم جانان ته نه رسي واړه زخمي لاسونه
دصبر په چاره زما دزړه زخمي لاسونه
دورانگو دسمالونه دشپې جيب کې لټومه
د درد په امسا ورمه داړانده زخمي لاسونه
تنې يې دمغل دگريوان غوټه شوې په زره کې
يرغل به کوي خدايگو پښتانه زخمي لاسونه
له ويرې پټ ساتم نه چې کوربه په وينو سورشي
داډير دېتې وري ميلمانه زخمي لاسونه
تبرونه راوريږي پر ځيريو پرښترو
په پښوکې دي پراته زمونږ دغزه زخمي لاسونه



وخت به راځي چې غــابښ دزهرو به ښــامــار نه لري
منصــور به ګــرځي مســتــانه مــلا به دار نه لري
مــارغــان دې راشي زمــونږ لپــوکــې دې ځــالې وکــړي
غـــرمـــو نښــتـــر نه لري کلي مـــو چنار نه لري
مــينې ګــيله په غــريونيــولې انداز داســې وکــړه:
ــ خلک په خــپلو کــارو بوخت دي په مــاکــار نه لري
وخـــپــل تـــارونـــه يـــې سنـدرو تـه زندی جـــوړيږي
کـــوم يو رباب چې مطرب نه لري، شــاتار نه لري
څـــنـــو ته څـــنـــډ ورکـــړه چې خلک په ريا پســـې مـــري
دکلي لمر تندر نيـــولی دی ســـهـــار نه لري
راشــه څـــاروان يې شــه کـــاروان يې کـــړه د ذوق ليـــونې
په غـــرونو ســـر دي دسندرو ښـــار ته لار نه لري



پرمـــاباندې چې پاتې دی دتوروکـــانو پور
په ســرکـــې مـــې هنداره ده دکـــوم زرین انځـــور ؟
دعـــا دبارانونوېې په لپـــه کـــې داغ داغ ده
زړګی مـــې دی دللمـــې دغـــاټول سکنی ورور
منم چې کـــره مـــې شکل لکه دتکې ســپینې سولې
په تورتوبـک مې وژني څوک دسپینې خولې په تور ؟
په شنوجـامـو ،په ســره سالو ،په لرکلي کـې ګـرځي
رایاد کـلـړي دبرکلي هرچنار اخـــســـتی اور
دراز له پټـو غـوټو پاړوګـرو شـیـبـو راشئ
کـوم لاس مـې تاو له غـاړې دی په شـانې دمنګور
چې یتـیـ راته ســاتي همـیـشـه دنغـمـو غـوټې
کـاړوانه مـــهـــربانه ده پرمـــادفطرت مـــور

پېښور ،۱۹۹٦جنوري



خبـــــري نه کـــړو زه او ته لکه چې توري مـــړه وي
په يوه لوري نـه شــــو تلای لکه چې لوري مــــړه وي
پټ مخ په څنـــوکــي به خـــوب وړې وي داســـې داسې
لکه دشـــپې زخـمـــونه روغ وي لکه ســتوري مړه وي
ستـــــادوعــــدو په پړاو ســـتـړي دارمــــان لاروي
څــــو لاروي لکه په لاره کــــې ســرتوري مـــړه وي
دياد په لاس مـــــې چې جـــرس دزړگي وشـــرنګوي
په سره غـرمـه کې مـې کاروان روان شي سيوري مړه وي

۱۹۹٤/۱۱/٤



یوه پیاده دحسن دې آشنا څنګه شامات کړمه
زړه دچاشاعر وم دبنګړي غوندې دمات کړمه

ستاد یاد غزل به په شېدلو تورونه لیکم
جوړ به له نرګسو له ګلابونه لغات کړمه

تریخ دکوکنار ګل ومه خو تا په غیر کې واخیستم
اوس مې ،ملکې پر نوروخورې زه خو دې شات کړمه

ماسره یاري به ستا دحسن طالبان کوي
عشق دابدالي یم تا به رام لکه هرات کړمه

اوس یې دحافظ په غزلونو کې په فال نیسم
خدایه! وایه تامین په څه شاخِ نبات کړمه

تول به مې دعشق دپیغمبر اُمتي ومني
تاچې یو حدیث دپاکې مینې دمشکات کړمه

لړ شه پښه نیولی دکاروان دتخیل سروش
زه چې دخپل زړه دننه مات لات ومنات کړمه

دماځکې دمه خبک دراشد ،پېښور ۱٦ دستمبر ۱۹۹۵

کـــــه تـه ســــــور اوريـې زه ولاړيم داوبو پـه طرف
دنيلوفــــرو دنرگــــسو ،بنفـــشـــو پـه طرف
کــــه کــــانې هم شــــې آيينې اوتصـــويرونه وژنې
لــکــه جـــــوهـر بـه يـم روان دآيـيـنـو پـــه طـرف
بخت مـــې دی ويښ دخنجـرونوخـواتـه خـوب کـومـه
لکه پاســـتـه رانجــه ورځـــمـــه دلېـمـــو پـه طرف
کـــه سـيلی هم وي کـــه شـــپـې هم زمـــانوم بـه ليکئ
دپـــتـــنـگـــانـوپـــروزرونـــو دډيـــوو پـــه طـــرف
دخـــدای لـه تپولو طرفـــونو ســـره مـــينه کـــوم
کـــافـــر مـــې مـــه بولئ کـــه ځم دپښـــتنو پـه طرف
درنپاســــــر رانه پـه لاره توروغلو واخــــيســــــتو
ســـوی ځـــراغ ځم دکــــابل دتوروشــــپو پـه طرف
تـه دابـلـيس پـرخــــــوا ولاړ يـې نـوم دې تـل يـاديږي
زه يـې گـــــمـنام چـې يـم ولاړ دپرښــــتــــو پـه طرف

۱۸ / ۲ / ۱۹۹۵ پيښور ،درروژې دمياشتې ۱۹



د تندې شپه اوږد ژوندون داتکې سپینې اوبه
داکوم حسین راکړې په لپه کې دمینې اوبه؟!

خدایه! لا سونه د زرینو ستورو ورپوې
پر مساپر ماښام چې وشیندې زرینې اوبه

زما د زړه د زخم ګل ورسره وغوړیږي
ستا پر شیرین حُسن چې اوري نمکینې اوبه

د ګلو پرخه، د پې مخیو د مخونو خوله
زما خوښیږي له بې رنګو دارنګینې اوبه

هغه ویالې هغه د سپینو سپینو لپچو په شان
خدایه ! مرهم را، له زخمونو یې څې وینې اوبه

لکه غنم غوندې مې وریبې دورڅو په لور
ځینو سپین مخیو ته چې خدای ورکړي غلمینې اوبه

خدای زده چې ولې یې غزلې دې شډلې غوندې
کاروان خوښلې دي په غرونو کې مهینې اوبه

لاهور، ۱۹/۳/۱۳۷٤



لکه یوگل وي پاڼې پاڼې له گلزاره وتی
داسې مې زړه درته آشنا په هره لاره وتی

ستا دښایست دلوی آسمان پرښتري پریوزي
دمینې ستوری مې دعقل له مداره وتی

سریندې واغوستې ددرد او دسندروجامې
دغه کیفیت له وچې ځانګې دچناره وتی

نه دی غزل ،نه یو څو توري سره غیبر په غیبر دي
چیرته یودرد دی یاغي شوی له پرهاره وتی

پردي گلونه یې دعشق په زبور څه پوهیږي
دداودي بلبلو سبل مې له دیاره وتی

دچا ښکالو ته مې زړه څک دي دپرهر غورونه
دالیونی مې ددنیا له هره کاره وتی

ستا دخندا دسپین تصویر دلارویو سره
کاروان داوښکو ،په رونې مخ لکه هنداره وتی

۱۹۹۳ پیښور

# توري او لفظونه

دسندرو ښاپيرۍ مې
دلفظونو په ښيښو کې
بنديوانې ،بنديوانې
دمرګ ديو رانه وړای نه شي
دغه پيغلې دغه ځوانې
که وختونه خاينان شي
که شيبې هم شي ناځوانې
امانت به يې ساتمه
لکه پاکې مومنانې
توري څه وو ؟ الفاظ څه وو ؟
دماناوو په لباس کې
دملا ، له دره راغلل
څه يې حورې څه غلمان شول
په ژوندون مې غلامان شول
څوک دزانو غوندې پورته
په کتارکې رانه لاړل
کتوري کې به لمر راوړي
په سهارکې رانه لاړل

څوک د ښکليو ښکليو ستر گو
په ديدارکې رانه لاړل
څوک د سپينو سپينو اوښکو
په مهارکې رانه لاړل
د گلونو پرمخ توی شول
ښيښه يې د نگې غړی ته
په يوهارکې رانه لاړل
ځينې ځينې مرور دي
څوک غاټول ولاړ په يوه پښه
په ها پورې لوړ کمر دي
څوک په رم کې دهوسيو
تښتيدلي، تښتيدلي
پسې غشي مې شړلي
پسې نه دي رسيدلي
څوک مې ښکليو ته په پښو کې
د گلونو غوندې توی کړل
ډيروارِه، وارِه ښکلوکي
مې همدې گلونو لوی کړل

پېښور، ناصرباغ نوی کمپ، ۱۹۹۶



ستا ورې ورې خبرې مې خوراک دي
شين طوطي يمه شکرې مې خوراک دي
په کړه خولې دې ګوره غلط نه شې
هغه توره يم چې زغرې مې خوراک دي
باران وژنه وچ کالي دې راخوره کړه
نهر نه يمه سندرې مې خوراک دي
تورو ستر ګوته دې غلي غلي ګورم
غرنی يمه ګور ګورې مې خوراک دي
هغه زړه يمه چې خپلې اوښکې خورمه
نه صدف چې مرغلرې مې خوراک دي
قام دميني يمه ،موم يمه ،اوبه يم
چې په قهر شم کمرې مې خوراک دي
لامې لاس پرخپل پرهر باندې سورنه دی
بيا به ګورې لرې برې مې خوراک دي
ديوې لويې اژدها قاتل مې بويه
باز خو نه يم چې کوترې مې خوراک دي

۱۳۷۶ ثور، پېښور

# مره هنداره

ها دښکلا ليوني چيري هم تصوير دځان ليدلی نه و
ځکه له کبره او له نازه يې شينکی آسمان ليدلی نه و
خو وخت دخپلې ښکلا دښتې ته راوستې وه په ناز ګرځيده
له ستر ګو لرې يې پرته يوه هنداره ځليده
په ادا ورغله هنداره يې له خاورونه ورپورته کړله
چې مخامخ يې دملالو ستر ګو سپين ته کړله تورته کړله
دخپل تصوير په ليدو ماته شوه دکبر له نيلي راکوزه
لکه دشمعې رڼه اوښکه شي داور په يوه تيلي راکوزه
وخپل تصوير ته په ژړاکې وايي :ښکلې ددنيا ښاپيری
زه درنه بيرته ځم زه خيال وم زه رويا ښاپيری
دښکلا دښته کې ته اوسه له شينکي آسمان کيږدی جوړه کړه
له دنيا لرې سپينو ستورو سره بيله دنيا ګی جوړه کړه

هنداره ی کېښوده له سرېې لیونتوب والوت ،هوښیاره شوله

له خپل تصویرنه را روانه په شانه ګوري هنداره شوله

په ورک تصویر پسې هنداره اوښکې اوښکې شوله مړه په ژړا

دژوندانه توده لمبه یې په لوی لاس کړله سړه په ژړا

له مړې هنداري راژوندی شو موده پس دژوند لمبه په لاس کې

یو سورغاټول موسکی موسکی تصویر دچادسوي زړه په لاس کې

تصویر په اصل کې یو زړه وو له شاعرنه په کاروان کې پاتې

چې تري هنداره جوړه شوې وه په دغه بیابان کې پاتې

۱۳۷۶ پېښور



شپه ده، غـدې شـته له خوب نه تشه لمن یوسئ
درد، دې وې پرهر مه ګنډئ نن په کې ستن یوسئ
خیر دی پرې یو ځو د سپینو ستورو سکې وبایلئ
ځان ته مو دلمر له قمار باز نه کفن یوسئ
ورشئ سخي جان ته له سلام نه پس کوتروته
لپو د دعا وو کې دانه دانه ړدن یوسئ
سپل د سیمرغانو شئ وزرو کې غونډۍ واخلئ
نن له اووه سري اژدها نه ځرمن یوسئ
یا خو د جنګونو دا بدرنګه بلا بوره کړئ
یا ترینه دامن جزیرې ته وطن یوسئ

۱۳۷۶ دجوزا ۹ تنې، دسیندوکې غونډۍ

# دکابل زخمي سندرې

دزړه زخم مې دسرې مالګې کمر دی
راختلی پرې دسپینو اوښکو لمر دی
دکابل زخمي سندرې یې رانه وړې
دباګرام «سروش »له مانه مرور دی
دبنېو اوشونډو یاد هم رانه هیر دی
جوړ غزل مې له خنجراو له پرهر دی
دلمر پیغله دغربت زیړې نیولې
سپین سحر مو زیړ په شان دمازدیګر دی
پرمریو مو بلا چړې شوې پخې
قصابان دکلي وایي چې اختر دی!
چې په تبر دبتانو مغزې غوڅ کړي
چاوې مونږ کې هم پیدا زوی دازر دی؟!
مات کودري یې له تاندو وینو ډک دي
دشهیدو پیغلو څه رنګین ګودر دی

مـايې زړه اوريده دی مـې چيـغـې ناوري
هو، د کـانو په غـوړونو کـوڼ خـيـبـر دی
سپـين لبـاس د پرښـتـو ابليس اغـوستی
جـاهلان وايي وارث د پيـغـمـبـر دی
پـوروري يـې دژونـد دسـکـو د پـر دي
زمـونږ کلي ته راغلی سـوداگـر دی
کـوټـنـۍ دمـاشـومـانو شـهـيـدانې
پر سـاحل راخـور دوينو سـمندر دی
کړې رندې د تصـويرونو مړو مړو اوښکو
تښـتـيـدلی له هندارو نه جـوهر دی
مـانو گـان يې خـرڅـوي پر نهنگانو
دبې نوحـه بيړۍ څـه سـپـيـره لنگر دی
دحـسـين اوذوالجناح وينې مـبـاح دي
دلتـه هلتـه دابيـان دهر شـمـر دی
هراغـزی رانه دوينو قلنگ غـواړي
دتنهـاکـو په پښـوکـې مـوسـفـر دی
بې جـرسـه قـافلې ته مـو جـرس کـړ
مـات مې زړه کې دظالم دغشي سر دی
څـه سـره، توده پيـرزو ديار اغـيـارده
د يو لاس کـې زمـهـرير دبل سـقـر دی

گرځوم یې در په در چیرته یې کیږدم؟
دژوندون دمړي پیتۍ مې پر سردی
دژوندون په هدیره کې یې ایسار کړم
یو اشنا راته نکیر دی بل منکردی
هر دجال دي دمهدي کالي اغوستي
په وطن راغلی بې نیتې محشردی
پرګلونو باروتي خپسي ناستي
دوږمو، په لمبو لولپه ځیګردی
یتیم ژوندایسار دغشو په سیلۍ کې
تاوله ځانه یې دزخم سور څادر دی
دایاز څنې دګورچینجو خوړلې
دمحمود دربار بې مشکو بې عنبر دی
چې له هندبه یې وږمې دچندڼ راوړې
دپښتون دطوطي مات هغه وزر دی
بیا یې کړی دی اودس د چا په وینو؟
چې خطاب یې دوژنې پرمنبر دی
په خلوت کې به دتاک تیونه روي
په جلوت کې سوی لوی دکوثر دی
دکاروان دوطن نوم په وینو لیکم
ماتراشلی ورته روح لکه مرمر دی
پیښور ۱۹۹۴/۱/۶، ۱۳۷۲ دجدي ۱۶مه



ول دځنو تاو له څوک دهلال کړه
دژوند ماته سرینده په سُز او تال کړه
زما زړه کې دسندرو بوټي نال کړه
چارچاپیر ترینه خور درد لکه دیوال کړه
دمجنون دګریوانه څیري ټوټه مې
خپلو اوښکو پاکولو ته رومال کړه
بیامې خاورې دخپل ځان دسر منګی کړه
ته هم ځان له لوی کُلال سره کُلال کړه
چې دسوو سروو سوي زړونه ښکل کړي
اسویلو سره مې مل هغه شمال کړه
منم تاپسې به بې غشي لینده شم
تا ته چاویل چې سترګې دغزال کړه؟
درد راپربړده له ځیګرنه مې داغ یوسه
پاس دوروځو دپیوند په منځ یې خال کړه
سرې اوشنې لمبې پر توري شپې کړه بلې
شنه پیاله په سرو منګولو کې مشال کړه
چې شېدل ،شېدل غمو ته ترې خوشحال شي
دا مهین غزل کاروانه میلمه پال کړه

۱۹۹۵ دستمبر ۷مه تني دسینډوکي غونډۍ



گله مخ دې پټ په زړه کې په هر آن
ښکلو مخ په لکه پاڼه د قرآن
یه ! د مینې د سحر دلمانځه کیفه
سندریز یې لکه سوره ء رحمان
شهنشاه د غزلونو دی لیکلی
ستا په دوو پښتنو سترګو کې دیوان
په منطق او فلسفه دې نه پوهیږم
ما لوستلی د مجنون څیري ګریوان
خدای زده ولې د ګودر غونډې رنګین یې ؟
ستا سرې شونډې خو لا ښکل نه دي پیزوان
تر هغه مه کړه له ښکاري هوسی د مینې
بیابان دژوند مې دی پرتا ودان
ستا خو دوست دی ستا خو خپل دی ستا خو مل دی
ما هم بوځه تر درشله د یزدان

اهدا: دغزل ښکلي شاعر او مینه ناک انسان ارواښاد خیبر اپریدي ته!



زړه مې سکروټو یاندې ګام واخیست
داچا دجم له لاسه جام واخیست؟
شوه میکده دغزل شاړه واړه
مست لاروی یې دخیام واخیست
بیاتوردیوان په بوربوکی کې راغلل
سپینو کوترونه یې بام واخیست
دښکلا بازپسې چاښکلي ښکاري
دخال دانه دځنو دام واخیست
چاراته سپین سهار کفن کړ
چارانه ستوری دماښام واخیست
ستا شرابي غزل په خوله و، زما
دګودرجونو مې سلام واخیست
مرګه وژلی خومونه وې چې تا
له مونږنه داسې انتقام واخیست
کوترې راغلې د«خیبر»پرمزار
کاروانه ځه دې ترې الهام واخیست؟

١٦/١٢/١٩٩٥ دارواښاد خیبر اپریدي دیاد په غونډه کې، پېښور جمرود

# د آسمان ناوې

دعشق لمونځونه رانه ډېر قضادي
هغه په وينو سره لمن يې راوړئ
چې پرې قضا لمونځونه بيا ادا کړو
هغه په وينو سور کفن يې راوړئ
چې پرې ياغي ياغي تندي کېږدو
چې د سجدو په اېينو کې له يزدان سره خبرې وکړو
چې د شهيدې ناهيدې له خورجانان سره خبرې وکړو
خدايه تاوليده افغانه د کابل ناهيده ؟!
ها د سپېڅلي بغاوت ملکه
دزړه په وينو کې خيشته
لکه سور گل ناهيده
چې د ابليس په سپيرو سترگو کې يې گل وکاره
چې د تياره کابل په غيره کې يې
دبلو بلو ډيوو ځل وکاره
چې د ابليس د هوسونو لاس يې

دسپیڅلتیا په سپینو تورو غوځ کړ
چې دغرور په مقدس تندي یې
د تورو ،تورو کانو زړونه مات کړل
دپاکیزه پیغلتوب څومره احترام یې وکړ
دزړه له ډک جام نه یې غړپ وکړ
موسکی موسکی شوه لکه روح دسقراط
پرپاکو پیغلو یې ځان وویشه په شانې دسقاط
تشه پنجره یې دژوندون له شپېر پوړ یزه بامه
لاندې گوزار کړه دفرعون داژدها پرژامه
سپینه کوتره شوه پروازیې وکړ
اووم آسمان ته لاړه
خدایه ته ووایه اوس چیرته گرځي ؟
دخدای پر شونډو یزداني موسکا خوره وره شوه
وې ناهیده دآسمان ناوې شوه فردوس کې گرځي
دنورپه گوتو دسپوږمۍ سپینه چمبه غږوي
دشهادت په سره لمن کې دآسمان له ستورو
دکابل جان لپاره نورټولوي
اودفرعون په سترگو بریښ و روي
دورک موسی لپاره طور ټولوي

۱۳۷۱ کال اووه لسمه روژه پیښور

# گیله

ما دزړه دغا تول تش کنډول راوړی
دنارنج دګل وړمې به په کې وړمه
دوطن ښېرۍ ، نښتر په زړه زخمي دي
دمرهم پرځای نغمې به په کې وړمه

***

نن مې روح لکه مچی پرګلوګرځي
له مچکونه یې سپین ګلونه ریږدي
ملکه مومره ده یه دروح مالکه!
دامچی به ګل دچاپه پښو کې کیږدي ؟

***

دغنم دانې به ډیر وړي راشنه کړي
لمربه هم پرې طلايي لاسونه تیر کړي
نه «صابر» شته نه «احمد» غوندې زلمي شته
چې يې تاج کړي طلايي تاجونه هیر کړي

***

لـه رگ رگ نـه يـې ښـکـالـو دهـوس څـــاځـي
راغـــځـــيـــږی دادچا پردي لاســـونـه ؟
ســـاقـي ســتـــريـې درمـــات کـــړ ، لوټـوي دي
درنـه وړي درحـــمـــتـــونـو گـــيـــلاســـونـه

***

داچي خـــوب مـــې تـښـتـــوي فـــريـاد ، دچادی ؟
داپـه نيـمـه شـپـه کـې څـوک وهي کـوکـارې ؟
دامــــې زړه دی کـــه کـــابـل دوينو ډنډ شـــو ؟
چې دابيــاپـه کـــې چاښــځـې کـړې نوکــارې ؟

***

چې داڅـــوک مـــې دوطن دپيـــغـلـو اوښکـې ؟
داســـې څـــښـي لـکـه اوبـه دنـارنجــــانـو
چې داڅوک مـې دشـهـيـد و وينو غـلاکـړي ؟
چی داڅـــوک ډکـــوي لپـــې لـه مـــرجـــانـو ؟

***

لمره وينې شــه شـپـــه دنور پـه غـــشـــو ولـه
گـــورې نـه پـرســــهـــار ونويې پـښـــې ايـښـــې
پـراغــــزنـو تـورو پـښـــو يې اوركـــړه پـورې
پرشـــهـــيـدوپرهارونويې پـښـــې ايـښـــې

جلال آباد ۱۳۷۲ دوري دمــــسـې ۲۳



راشه چې نغمې کړو سره ګډې ربابونه شو
راشه سره ولولو د شعر کتابونه شو
راشه چې بانه پرېږدو کېږدو سترګې شو
راشه دا ځنګلي کړو خړوبې دریابونه شو
راشه چې لاسونه د شغلو کړو له یو بل نه تاو
راشه څوجوره جوړه آسمان ته شهابونه شو
راشه د دعا په شونډو ښکل د یزدان شونډې کړو
راشه چې سجدې شو ښکلي ښکلي ثوابونه شو
راشه پټ پټ پټانې شو او پټ پټ سره بیامومو
راشه سوال د مینې شو د مینې ځوابونه شو
راشه چې د روح پر للمو وکړو د نغمو باران
راشه چې یو بل ته مطربان شو مضرابونه شو
راشه د «رحمن» پر غزلونو تندې ماتې کړو
راشه هسې نه چې د رواغجن شو سرابونه شو
راشه چې کاروان مو د خمار له خوبه پاڅوو
راشه چې یو بل ته هم ساقي هم شرابونه شو

۱-۱-۱۳۷۲

# شینکی طوطي

دوه ښایسته ماشومان
غشي لیندۍ په لاس کې
راغلل موسکي شول او لیندۍ یې کش کړې
زما شینکی روږدی طوطي تاسو لیدلی نه و ؟
چې هره شپه یې په وریښمینه ژبه
راته کیسه د ښا پیرۍ ویله
هغه شینکی طوطي یې
داسې بیدریغه وویشت
چې شنې بڼکې یې باد
ترسپینو ستوروشنه آسمان ته یووړې
د ښا پیرۍ کیسه دانې دانې شوه
لکه د ستورو امیل
سپوږمۍ په سپینو مرمرینو لاسو
د سمندر شینکی څپې تخنولې
او د څپوله سترګو خوب تښتولي

شینکی ځېپې لکه زما د طوطي شنې بڼکې
نه نه خطاوتمه
لکه په شنو شالونو پټې پېغلې
په ګل کښې غېبر تاووي
زه شین طوطي لټوم
خوهغه ورک دی لکه خوب دمین
د سمندرله ځپو اخوا دګلکښې پرلمن
یوه ښاپیرۍ په شنکي خوب اوده ده
یو شین طوطي یې خواته
پر سپینه لیچه ناست دی
طوطي زما د تښتیدلي خوب داستان یادوي
او ښاپیرۍ د ناز خوبونه کوي

۱۳۷۱/۶/۵ پېښور خیبر پلاز.

# معشوقه

ته معشوقه هم لرې ؟!
ووایه نوم یې څه دی ؟!
ماوی زما معشوقه شعر نومیږي
دمورله مینې آن دخدای تر پولې
ورسره مینه کوم
آسمانه ته ووایه
داسې عاشقه معشوقه به هم وي ؟
چې لکه شعر خوږه وي
دمورله مینې
آن دخدای ترپولې
راسره مینه وکړي.

۱۹۹۳/۲/٤ پیښور

# د دردسکې

ته د چړ و په ګوتو
زما د زړه په جیب کې څه لټوې؟
پام کوه وینې یمه چې غلاونه کړې
دلته د درد یوڅوسکې پرتې دي
د عشق تبا په ده لګیدلې پردې هره سکه
دا مې د زړه د خزانې پانګه ده
خزانې مه لوټوه
هسې هم دا سکې په دې بازار کې نه چلیږي

۱۳۷۲ پېښور

ځان راوښیه د مصر زلیخایې ؟
که پاچایې د خوبونو د کنعان
دا ته څوک یې چې دې وینځې دي سندرې ؟
دا ته څوک یې چې غزل دې غلامان ؟
لږ د مه خو وکړه ګر ځنده ګلابه !
درپسې مې سترې دواړه بوراګان
اداګانې دې د هند د نخاګرې
خو جلال دې په څېره کې دافغان
خلک وایي چې یې سترګې لیونۍ دي
زه خو بولمه دا خلک لیونیان
د داستان غوندې له سلو غوټو ډکې
ځان راواوروه چې یاد دې کړم آسان
ته واته هم د پښتو خوږه لنډۍ یې
یادوم دې په زار زاراو په قربان
ځان دې ساته ګل اندامه ښاپیرۍ یې
خدای دې مه وړه په کوم دیو ترابان
چاویل راته چې ته څنګه شاعر شوې ؟
ماوې ماته شاعري راکړه جانان

# ملنگ

هادوربښمينو افسانو شهزاده
مات شو په مينه کې ملنگ جوړشو
هاچې کچکول يې له قلنګه ډک و
اوس د پردو پردوقلنګ جوړ شو
هغه دی ويې ګورئ
پښې يې په واوره پورې ميخ دي لکه وچې غوړګې
اړوي يو خوابل خوا
داوښکوډکې سترګې
کالي يې څيري ويري
سپيوداړلی دی له ټول بدن يې وينې څاڅي
له ډک زړګوتې يې يوه يوه سلګی راپاڅي
دلاس امسايې دکوڅوليونو سپويوړه
دفريادونوپرمريويې خپسې ناڅي
دبې وسی په زنځيروتړلی
بخت يې مرګي په هديرو تړلی
زلمی ملنګ دی خوبوډا ښکاري
خدايه داولې په ماخوږلګي؟
دروح په سترګو ورته ګورمه آشنا ښکاري

کچکول یې ژی پورې هندارونه دِ ک

خود ښایسته وو تصویرونه ترینه باد وړي دي

له یوه ماښامه بل ماښام ته راغی

دارمانونو سهارونه ترینه باد وړي دي

واوره وریږي له یخنی رپیږي

هغه تاوده لمرونه ترینه باد وړي دي

پرمخ یې بنده دلیلا دروازه

وړي په کچکول کې د دیدن جنازه

تولې کوڅې دي دفرعون داژدها ووژامې

غریب ملنګ دی له یخنی نه ریږدي

تنها کې پښې داژدها پر ژامو څنګه کیږدي؟

دروح په ستر ګوور ته ګورمه اشنا ښکاري

نه دی ملنګ دکابل جان زخمي ارواښکاري

خدایه مونس لکه موسی نه لري

له معجزې دکه امسانه لري

لکه توتې توتې غوڅ شوی زړګی

لکه قاموس داوښکو

پانې یې مه لټوئ تکی دموسکانه لري

۱۳۷۱ پېښور



لـه ډ ک زړګي نـه يو فـــــرياد راغـلم
مـــاوې چې ځــان کـــړمـــه درياد راغلم
مــرهم مــرهم مــې شــه اوغــيـره راکــړه
زخــــمي زخـــمي لـه درد آباد راغـلم
دشــيــرين جـام په شـان پرويزنوش کـړم
ويـنـه لـه زړه نـه دفـــــــرهاد راغـلم
پرسـپــيـرو ســتـر ګــويې ګـلان کـرمــه
وسـبـوم ايره په غـــيـــږدباد راغـلم
ددام کـــړی مـــې په پنجــوکـــې يوړې
چې الـوتـلم پـرضـــيـــــاد راغـلم
عـشـقـه ژوندون راکـړه نيم ژواندی يمـه
لـه زنـده بـاد اومـــــــــرده بـاد راغـلم
زه دکــــابـل دجــــينکيــــونذر
خـدايه قـبـول مـې کـړه مـراد راغلم
شـــاه مـــردان مــــې په ژړا ولـيـــده
پرښـــايســتـــه ام البــلاد راغلم
زه دوطن دمـــهــاجـــرو کـــاروان
هم لـه مـــــلاهم لـه الحـــاد راغـلم

پېښور ،۱۸/۱۱/۱۳۷۱

# د تبسم لاس

دغه مې چاره دغه مې پړی دی
تا ته مې توی وړی واک درکړی دی
ته مې شهنشاه د غزلونو یې
بې له تا غزل زما نیمګړی دی
دا ما شوم ژوندون مې کړه للوللو
خوب یې د غم تورې پیشووړی دی
«لاس د تبسم دې کړه راتیر په زړه»
ډیر لکه یتیم په ژړا ستړی دی
ستړې شوې اوړې د فریادونو مې
عرش پورې یې بار د دعا وړی دی
ستا له رنګ مې لپه برخه واخیسته
خیال مې د رنګونو ژړنده ګړی دی
سور د روح په وینو د کاروان غزل
ته واد کابل د پیغلې مړی دی

د روژې شپېږم ۱۳۷۱

«د تیاګور له یوه ترکیب نه په الهام ، تاوون دلیکوالو تیولنه»



تللې پر دې للمه دباران کلي ته لارې د
راشه دګلونو دیزدان کلي ته لارې دي
زده کړه پروازونه له مارغانونه پوښتې څله ؟
دروه بلاډیرې دآسمان کلي ته لارې دي
ته مې ګمراه بوله خوزه ستا پرلاره نه ورځم
ماډیرې لیدلې دجانان کلي ته لارې دي
پښتو ته پنې جوړې له تیاکوډک زړ ګوتې کړه
تللې په اغزوکې ددرمان کلي ته لارې دي
خدایه دشیطان په څلور لارې کې مې پرې نه ږدې
خدای ته ګوره کوم خوا دانسان کلي ته لارې دي ؟
ستا تیا کو پښتو ته به تکور په زړ ګي ورکړمه
یوی یمه اغزنې دکاروان کلي ته لارې دي

× پښبور ،دلیکوالو ټولنه۷ ۱۹۹۳/۲/۱٤



چیـــــرته یې کـــــراره بیکراره یم
راشـــــه چې تنهـــــا یمـــــه بې یاره یم
مـــــاته عـبـــــادت په نغـمـــــو وښیـــــه
ځـــــوبه بې ربابه بې ســـــتـــــاره یم
غـیـــــږه راکـــــړه غـیـــــږه راکـــــړه ستـــــړی یم
ښکلیـــــه وارخطا یمـــــه بې واره یم
رود ، دې درنګونو کـــــړم رنګینـه یې
رودنـــــه یـــــم دزړه دویـــــنـــــو داره یـــــم
راشـــــه په کـــــچکول کې مـــــې خنداراوړه
زه دلیـــــــــونیـــــــــو لـه دیـاره یم
ټول مـــــې کـــــړه ټوټې ټوټې ســـــرودیمـــــه
تـــــاوې چې مـطـربـــــه یم شـــــاتـاره یم
ورک به شم کـاروان یمـه ځـاروان مـې شـه
کـوم خـوامې چې بیـایې سـتـا په لاره یم

۱۳۷۱ کال د روژې میاشت

# امتي

پرون دې سترګې داسې
خوږې راواړولې
لکه چې دوه پیغمبران،
دخدای له لوري راشي
په تن یې توري او وریښمینې جامې
پرتکوسپینو براقونو سپاره
لکه دسپینې رڼا سیوري راشي
د دواړو لاس کې صحیفې دموسکا
لکه په یوه تپه تیاره زمانه
چې ځنګ په ځنګ راشي عیسی اوموسی
پرون دې دسترګې داسې
خوږې راواړولې
لکه چې دوه پیغمبران دعشق له خدایه راشي
زه نه پوهیږم مقدسه حسنه

چې تاته ووایم غونډۍ دحرا
اوکه دطورنوراني هسکه څوکه؟
پرون دې دسترګې دقرآن دښکلو تورو غوندې
زما په زړه وریدې
پرون دې سترګې ګل په غیږ کې دمچیو غوندې
زما دروح په شاتو
راتاویدې تاویدې
ماستادسترګو دسپیڅلي کتاب
دلوستو نیت کړی دی
اداکوم دا مقدس کتاب دزړه په سکه
دروح په تاخ کې ورته ځای جوړوم
بړدم یې پرپانه پانه
دطاووسانو دمینې جوړی
ښکلې رنګینې اوپستې بڼکې
په کې دمینې آایا تونه وایم
ځان ددې دوو پیمغبرانو امتې جوړوم
۱۳۷۱/۵/۱۶ پېښور



حسنه که منیزبان مې شوې میلمه یمه
عشق یمه غزل یمه نغمه یمه
وامې وره په مستو نرګسي سترګو
ژوند راکړه نیم ژواندې زمزمه یمه
رانغلې راغبر دې کړچې درغلم
چیرته یې ؟ تاوې چې کرشمه یمه
درته چې درځم څه رانه ورک نه دي
هسې ستا لیدلو ته پلمه یمه
راخوشه چې ستا دعشق په دین شمه
تاوې چې ما ولوله کلیمه یمه
روح دې دی غزل غزل خو شعر دې خام
پوخ به شي تاوې چې زه اومه یمه
اوښکه شوم قاصد نه لارکې پریوتم
زه د یوسفي کمیس تکمه یمه
بحر د آسمان را دسپور مۍ په جام
تاسوی په تکنه غرمه یمه

۱۹۹۳/۱/۲٤ پېښور

شاعر ملګري عبدالوهاب بريال ته چې دسپيدې دفتر ته يې دنرګس ګلونه راوړل

# رنځور نرګس ته!

سترګې رنځورې وایه څه په زړه لرې نرګسه؟
تاهم ليدلې د کابل ژيړې څيرې نرګسه؟
ژيړه څيره ،رنځورې سترګې لکه لمر دغروب
په ماز دیګر کې درته چاو کړې ښيرې نرګسه؟
چادرته وې دسپيدې پيغله مرې دمينې په تور؟
چې شوې راکوز لکه جنډه دهديرې نرګسه
روح په مينو بلبلانو پسې چيرته يوسم؟
ډيوې دې مړې تورې تيارې دې راخورې نرګسه
خدای خبر بیا به چيرته واورونرګسي راګونه؟
د*پسرلي دتغزل له منارې نرګسه
نن دې له هرې پانې پانې نه ګيله وريږي
لکه کيسه دطالب جان د ګل بشرې نرګسه
شپه نيمه شپه ده راځه تش کړو سره ډک زړګوتي
بيابه نه ته وې نه کاروان نه يې مسرې نرګسه

۱۱/۱/۱۹۹۳ پېښور خيبر پلازا ،دسپيدې مجلې دفتر

*دافغانستان نازک خيال شاعر

را یاد یږي دې وړې وړې خبرې
چې په شنو ونو کې وینمه طوطیان
پښتنو د جوماتونو وطن بویه
د نګې د نګې منارې یې ستا په شان
لاس وروغ ځوه شپه دې د بوه مړه دی
یو ځو ستوري خو راواخله له آسمان
رانه ورک دی سرګردانه پسې ګرځم
ګوندې وي چې چیرته بیا مومه ځان
که دې خوب وي تښتیدلی راته وایه
چې خپل ټول خوبونه درکړمه ارزان
بس یو سکه موسکا دمینې راکړه
دومره ارزنه یم په ګټه په تاوان
عقیده مې شوې په زړه کې مې اوسیږي
یادوم دې چې روزې مې شي ایمان
کړه ولجه یې قصیدې به درته وایې
له باګرامه دسندرو ځي کاروان



بدرنگه زمانه شوه ښکاوي لال په غشو ولي
دوروځو په پیوند کې شینکی خال په غشو و
رباب یې په زړه وویشت دښکلا سرود شهید شو
له درده راوتلی سراوتال په غشو و
شیشه په غشو ولي وژني روح دښا پیریو
دیوان راپاریدلي دي جمال په غشو و
ماښام یې دنکریزو په سروو ینو لمبولی
سبا به اختر وژني نن هلال په غشو و
څوک نه شي یادولای دیارنوم په ترنم کې
دا دور دبتـــــانودی بـلال په غشو و
داتول غشي مي بیرته پردې یوزړ ګي لګیږي
سهیل په غشو ولي که شمال په غشو و
تیاروشپو دسبا پرکاروان بیا کړی یرغل دی
له ستړیو لارویو نه مشال په غشو و

۱۳۷۱ پېښور

# زرین براق

تیل به یې وسوځي د یوې به مرې شي
سبا به راشي شوګیرې به مرې شي
د زړګي جام به نذرانه کړوورته
د مرګ په سترګو کې نشې به مرې شي
پاس پرکنډو زرین براق ولاړ دی
وړې به مې یارته فاصلې به مرې شي
لکه دعا به مې ترعرشه یوسي
ستا د سرکوشونډو شیرې به مرې شي
بند په پنجروکې د مچکو مرغان
آزاد به والوزي پنجرې به مرې شي
د بنورپ کې به جانان ته رسو
د بیلتانه اوږدې شپې به مرې شي
د نغمو باغ کې به کاروان واړوم
ساقي به غیبر. راکړي توبې به مرې شي

۱۸/۶/۱۳۷۱ پېښور خیبر پلازا



دښاخکو په ليمو مې سمندر ليدلی دی
په ټولو آيينو کې مې دلبر ليدلی دی
شهيد ما زديگری کوي شغلې لکه حسين
شفق مې سور په غشو دشمر ليدلی دی
له زړه مې چې کړي جوړه وچوشونډو ته کوزه
ورځم پسې چا داسې کوزه گر ليدلی دی؟
دامستي مستې اوښکې چې جوپې جوپې راځي
دې پيغلو مې په سترگو کې گودر ليدلی دی
بتگرد تخيل مې جوړوي بت دجانان
په روح کې يې زما کان دمرمر ليدلی دی
ته پوې يې چې داښنگه شو کاروان غزل غزل؟
دانن يې ايله يو نظر خيبر ليدلی دی



داغ مې دزړ ګوټې شوې غاټول دې کړم
پټ مې شوې په پاټوکې راټول دې کړم
خیال مې تاووې غیږه له ستورونه
شپون مې شوې دسپینو وریوشپول دې کړم
دیریمه خوددار خوستا دنازملنګ
سوال دې کړمه ښکلیو ته کچکول دې کړم
مست دې کړم ،درود دې کړم ،سرود دې کړم
عشقه زه ګونګی وم غزل بول دې کړم
غر دمر غلرویم درجاربه شم
ښکلیه که په ښکلې اوښکه تول دې کړم



ستا په یوه خندا آسمان ته رسو
دسپینو ستورو سپین جهان ته رسو
د ګل په لپو کې اې تږی دعا
له تندې مړه نه شې باران ته رسو
لکه لوبیږی پر ګلکځ ماشومان
څړیکې دلمر یوسره پیزوان ته رسو
هرڅه زغملای شو، قد غن د دیدن
پام لیوني یو بیابان ته رسو
دسهیل ستوري یو رانده خونه یو
دبڼو رپ کې کابل جان ته رسو
لامو وزربوی دچندنولري
هغه طوطیان یو هندوستان ته رسو
پرون دښکلو نورستان ته لاړو
نن ستا دخنو کفرستان ته رسو
ویشتلای زره مې شو جرس دکاروان
له ځانه کوچ کوو جانان ته رسو



جور دسهار وتو موپر هر نه دی
لمردوینوژی دی لاخو لمرنه دی
اوښکي مو ولي، ولې رواني دي
پيغلو منگي مه راوړئ گودرنه دی
ستړيو قافلو پام چې بې لارې شوی
سرته مو پردی روان رهبرنه دی
څوک مې رنگوی دادزړ گي جومات؟
وايي چې قبلی ته برابر نه دی
دکه موکعبه شوه له بتانو نه
مور کې لا پيدا زوی داذرنه دی
ليو کې موزړه ددعا وچاوده
سره مودي لاسونه خواختر نه دی
مانه دې دغم تيشه بتگره شه
ړوند شي دامې زړه دی خه مرمرنه دی

۱۳۷۱ اوومه روژ

# شینکی باغ

دشنه اسمان د تکې سپینې سپوږمۍ
د پلوشو تر سپینو څاڅکو لاندې
یو شینکی باغ دی له خندا نه شین دی
لکه د سلو طاووسانو د ښکو جلوه
لکه د سلو پسر لو قافله
لکه چې سل خزانه
عاشقانه ښکلا په غیږ کې راوړي
لکه راټول شي راټول
سل د نکریزو ماښامونه رنګین
لکه د یوه کوثر په غاړه ناست وي سل جنتیان
په شرنګا واخلي سل جامونه رنګین
دا شینکی باغ مې له ګلونو ډک دی
لکه د سلو ناوو سپین مخونه سره لاسونه
د باغ په غیږ کې ژوندي

دنغمو سل محشره

او ددې سلو ښکلاګانو غيږ کې

دسپينو او ښکواو موسکا له خمير

يوه ماڼۍ جوړه ده

چې تر آسمانه رسي

چې هرې خواته يې دي خلاصې سل دميني کړکۍ

په دې ماڼۍ کې دوه په دوه اوسيږو

زه او هغه ملکوتي ښاپيرۍ

موږ دوه په دوه له دوزخي ديوانو لرې اوسو

لکه په يوه صدف کې غبرګې مرغلرې اوسو

لکه په زير وبم خورې جوړه سندرې اوسو

موږ دايمان دمارغه دوه غبرګې وزرې اوسو

موږ په ماڼۍ کې دادميني سل کړکۍ خلاصوو

غځوو هرې خواته

سل دنظر لاسونه

دلمرله څريکونه جوړ شوي منور لاسونه

دشپو پر زخم باندې ږدو دسپين سحر لاسونه

ته دهندارو دوطن شهزادګۍ

ستا پروجود راتيروو پاک دجوهر لاسونه

ته دهنداروجوره واغونده مانۍ ته راشه
ته مې دخيال اوروياګانو ښاپيرۍ ته راشه
ورته موسکۍ ،موسکۍ شه اصل ورکړه
دښکليو ، ښکليو تصويرونو رنګين فصل ورکړه
زما دروح له پيوندونوسره وصل ورکړه
ته دريا په ګوتو
دغزل توري راکړه
او دمسرو درنګينو په خاطر
لاس غځوه شينکي آسمان ته رانه ستوري راکړه
چې نن مې روح ملکوتي غزل ته بيا توسيږي



# دشاعر دخوب مړی

ستا دیاغي ښکلایاغي تصور
زما دخوار اود بيوزلي ياد اروا واخلي
ځانته ژوندون واخلي او ساواخلي
لکه دټولو عريانو سلطان
دخيال پر مستو اويادي او ښانو پښه واړوي
زړه مې پرسرلکه دسرو ميوښيښه واړوي
له عجمي سترگو مې خوب لکه ماشوم دعجم
په غيږ کې وتښتوي
او دبادی اوښ په سينه پورې يې کلک وتړي
زما دخوب دماشوم
په چيغو ، چيغو کې زاره وچوي
ښکليه په خپله راشه ويې گوره
زما دسترگو پرشگلنه سور بخونه دښته
ستا دشاعر دخوب يومړی پروت دی

۱۰/ ۹/ ۱۳۷۱ پېښور ،خيبرپلازا



سپوږمۍ اورانه ستوري مې دکلي په اوبو کې
راکوز وو له آسمانه او ما ښـلي په اوبو کې
ژوندي وو څـراغـونه مـاليـدلي په اوبوکـې
هغــه زرين کـبـان يې نن وژلي په اوبوکــې
گلپـانې يې کـفن وو دمـچـيـو بوراگـانو
گلونه دجـانـان راږسـيـدلي په اوبوکــې
منار دجومـات مات و پکې نيت يې ودځـالې
وزرونه توتکيـو وو مـينځلي په اوبوکــې
اوږۍ دچا دغـاړې دچنار له څـانگې زانگې
جـورشـوي وو دمـاتوبنگړو ځلي په اوبوکـې

# یادونه

نن دی یادونو لکه مسته پیغله
زما زړګی لکه ښکلوکی ماشوم
په هوس وتخناوه
څومره دې وخنداوه
له ډیره شوقه دې پری سپین غاښونه ولګول
څومره دی وژړاوه
اوس یې په غیږ کې نیسه
اوښکلوه یې په ناز
رضا کوه یې که رضا دې نه کړ
نادان ماشوم دی زماني خبروي

۱۳۷۱/٤/۷ پیښور خیبر پلازه

# ناهيد او د ناهيد د لارويو فرياد

پاکه الهه و ، پاس له ستورو نه راکوزه شوه
کړیکه د ملالې وه زخمونو کې مرموزه شوه
لښته د غنم و ، پرلرونو یې غورزنگ وکړ
شوه که غوټه ، غوټه د اغیار دستر گو دروزه شوه
توره شوه تش لاسي غازي واخیسته او شرنگ یې شو
څریکه شوه د تندر د شیطان پر تندی پریوته
لاره د جنت یې شهیدانو ته رنگینه کړه
نن د چاله لاسه په نیام کې بندي پریوته ؟
څنې یې درپرې کړې تاپرې ماته لینده جوړه کړه
غشو دې سوري د منکرانو ځیگرونه کړل
داسې پرښته باندې نن ولې بې اعتباره شوې ؟
ولې دې په لاس کې ورته غوټه زنځیرونه کړل ؟
سیل دا بابیلو ته دې لومې غوړولې دي
لاره ابرهه ته جوړوې چې پیلان راولي
ډیر به تنکي زړونه د پیلانو تر پښو لاندې کړي
ژوبلې به سجدې کړي پر کعبه به تالان راولي

۱۳۷۱ دا سد میاشت ، پېښور ، خیبر پلازه .

# زما مین تخیل

لکه یوستړی شپونکی
چې ورکه کړې پې وې لویه رمه
دهغه غونډې منډې ښکلي غونډۍ
په شاوخواکې لالهانده ګرځي
لکه دسترګو دزمبار یه شانې وکړي دمه
بیا په لټون دخپلې ورکې سرشی
اوله غونډۍ نه طوافونه کوي
دغونډۍ روح لکه ځلادښایسته الماسو
ددې غونډۍ پر سر ولاړه یوه شنه اویوه ګڼه ونه
پر سپینو ښاخکو دباران مینه
داوږدو ښانګو په اوږدو لاسونو
رانیسي تل دشنه آسمان لمنه
ددې اوچتې ونې
په سرکې ناسته یوه توره دسحر بلبله
ځانته دستورو په اینو کې وایي

یوه غمجنه دماښام غزله

دسپینو ستورو په رڼو اینوکې

ځانته جوړی جوړوي مینه کوي

په شنه آسمان کی ستوري سپین ځلیږي

لکه په شنه چمن کې

دسپینو وریو رمه

زما مین تخیل

لکه ارواد شهید

پورته آسمان ته خیژي

دسپینو، سپینو ستورو

رڼو اینو کې دبلبلې ترانې ښکلوي

او دبلبلې درنګین تخیل

جوړی ته روح ورکوي

۱۹۹۲داګست ۲٤پېښورخیبر پلازه

# زموږ وطن

لکه زخمي مجاهد

چې دروسانو په ګولیو یې ټټر سوری وي

چې له زخمونو نه یې وینې څاڅي

دوینو څاڅکي یې دسپین سحر پر سپینو شالو

جوړوي سره ګلونه

لکه د پیغلو او تنکو غوټیو لوټ پیغلتوب

دانګو سره یې تالا والا دي

لکه دزیږ مني رنځور مازدیګر

په سر یې لمر ځړیږي

لکه دوینو دکڅوړې په شان

زموږ د پیغلو او زلمیو زړونو

له تودو وینو ډک دي

دزیږو ، زیږو پلوشو تارونه

دزخمي زړه ته تللي

موږ خپلې وینې په وړیا ورکوو

چې دادلمر کڅوړه تشه نه شي

چې د زخمي زړګي په توره شپه کې غلی نه شي
اف خدايه! نه پوهيږو
زموږ زخمي پرڅه نا دانو طبيبانو واوښت؟
څوک يې زخمونه په نوکا روسکوندي؟
پر طبيبانو موشکونه کيږي
داهسی نه چی د زخمي له ترږور انو سره لاړولړي
زخمي ته زهر ورکړي
خدايه ميرات به شو ميرات ميرات
خدايه ميرات به شو ميرات ميرات

۱۹۹۲د نومبر ۲۰ پيښور خيبر پلازه



ښکلیه څاروان مې شه کاروان به دې شم
له ځانه ستړی یمه ځان به دې شم
سپینه کوتره شه پرواز راوکړه
غیږ راکوه شینکی آسمان به دې شم
لوله مې تل په ترنم، ترنم
غزل، غزل یمه دیوان به دې شم
یو تږی ګل شه انتظار مې وکړه
زه را وریږمه باران به دې شم
رخش دار وامې درته زین ولاړ دی
راشه رستم مې شه داستان به دې شم
ښکاري خونه یم هوسی څله تښتې؟
چیرته به درومې بیابان به دې شم
راشه جنت مې شه جنت به دې شم
راشه ایمان مې شه ایمان به دې شم
راشه میلمه مې شه میلمه به دې شم
راشه میزبان مې شه میزبان به دې شم
دزره له غوټو مې غمي جوړوه
راشه دسرو غمیو کان به دې شم

۱۸/۲/۱۳۷۲ پېښور



لیمې دې له خماره تکې سرې شي میکدې شي
داوښکو دساقي په لاس کې ماته را اوړدې شي

دخدای دنور په شونډو مې سپیرې شونډې لمدې شي
سجدې مې چې په میوکې لمدې شي نوسجدې شي

دزړه مسته غونډۍ مې دسوماګلونه سپړي
سپوږمۍ دکوه جام چې پیغلې نجونې پرې تودې شي

بیګانې دتوبې بلالښکر له تیغه تیر کړ
زاهده جنتي حورې دې ستادمورشیدې شي

ستاخیال یې سرته ږدي دسرو ، وریښمو بالښتونه
داسترې شوګیرې چې په سکروټو کې ویدې شي

۲۱ / ۹ / ۱۳۷۱ پېښور خیبر پلازا



هره شپه مې ستا ليدلو ته رويا توسيري
ستا موسيدو ته مې د سرو او ښکو دنيا توسيري
مغرور باران پوښتنه نه کړي د ر نځورو ګلو
نن يې وهلو ته مترو کې د بريښنا توسيري
سوځو تيارو ته دزړو ويني لکه تيل دډيوو
وروستي لمبې وهي رڼا ته د سبا توسيري
ظالمه ورک يې نه رادرومې لکه خوب د کابل
زما په لپو ، لپو اوښکو کې دعا توسيري
په زما شمسه درڼا غوټو کې چيرته يې پټ ؟
عشق زاره چاودی مې په شان د مولانا توسيري
ته له ماني راشه ځنګل ته ، داسې تا پسې زه
لکه بودا ته چې کيفيت د نيروانا توسيري
سپوږمي د شپې پر غاړه واړوه دستورو کاروان
نن مې اروا ملکوتي غزل ته بيا توسيري

۱۳۷۲/۲/۲۴ دليکوالو ټولنه تاون پيښور



چیــــــرته یې هنداری بې تصــــــویره یم
راشـــه چې بې خـــویه بې تعـبــــــره یم
راشـــه چی تنــاکـــې پښی دي ښکل کـــړمـــه
ورکـــه سـبــا سـتــړی له شــوگـیـــرده یم
دردیم په لفظونو کـــــې مــــــې ونغــــاړه
لږ خـــومـــې بیـــان کـــړه بې تفـــســیــره یم
شـمس مـې شـه صیـقل مـې کـړه شاعـرمـې کـړه
مـست مـې کـړه محـبـوب مـې شـه بې پیـره یم
زړه مـــــــې وروړ دلـلــمـــــــــې دگلـونودی
ورک دبـارانــونـو لـه بهـــــــیــــــــره یم
خـــدایه کـــــه پښـــتـــوراســـره ووایي
جـــــار دي له منـکـراوله نـکیـــــره یم
چیـــــــرته دسنـدرو کـــــــاروان وا‌ړوم؟
زه راغــــلـــی نـــن لـــه بم او زیـــــره یـــم

نریزي ، سیندوکي ۱۳۷۲/۳/۱۳

# شاعرې ارواته!

ته د ښکلا د غره پر سر ولاړه
لکه مغرور د او سرکشه ونه
سر دې آسمان ته رسي
د سپینو ستورو د رازونو په جیبونو کې لاسونه وهې
او د اوږدو وریښمینو څڼو په پښتو متروکو
د ګل وږمې وهې پر مخ سترې بادونه وهې
ته د ګلونو پرخې پرخې د بلبلو د سندرو
په تارونو پېیې
پښو ته پایزېب جوړوې
د رڼو وړانګو له بنګړیو نه په ډکو لاسو
د شنه آسمان له تاخ راکوزه کړې چمبه د سپوږمۍ
په ګودرونو، په سیندونو، دریابونو کې یې وغړوې
درې، غونډۍ، غرونه، ځنګلونه ورته و نڅوې
د دریابونو د څپو پر سپینو لوڅو مرمرینو لېچو



په هر کاروان کې مې ځاروان لټاوه
په هر جانان کې مې جانان لټاوه
د تورو سترګو سیند دې وړی یمه
چې ما به ته که ما به ځان لټاوه؟
ته مې دستورو په اینو کې لیدې
بیګا مې ټوله شپه آسمان لټاوه
خوب مې لیده چې قیامت راغلی
ستا په منګول کې مې ګریوان لټاوه
باران په ښو ګوډ کړي مانه لټوي
د لمې ګل وم ما باران لټاوه
د خیال له یبلو ښو مې ویني ځاځي
په ورکه دښته مې کاروان لټاوه

۱۳۷۲/۳/۱ پېښور



خوب مې شه په سترګو کې تعبیر مې شه
راشه چې مرید، دې شمه پیر مې شه
ځان راباندې وپیژنه روند یمه
ښکلیه ایینه مې شه تصویر مې شه
روح مې ګل په غیره کې مچی، مچی
ګرځنه پرې موسکی، موسکی او میر مې شه
سیند یمه اشنا چنګک راواچوه
کب مې دزړه نیسه ماهي ګیر مې شه
وله مې دعشق دغره مارغه یمه
ښکار مې کړه ښکاري، کمان او تیر مې شه
ماباندې رنګین انقلاب راوله
سترګې یم بدل مې کړه تقدیر مې شه
راوله کاروان دغزل راوله
زه به دې رباب شم بم او زیر مې شه

۱۳۷۲/۳/۲۸ پیښور کیابیان



ولاړې مې دې شپې د رومې ډيوې په منډه ، منده
اغزي مې پر زړه تم دي د ګل پښې په منډه ،منډه
پيلان دابرهه دي له کعبې نه راتاوشي
لټون دابابيلو کړي سجدې په منډه ،منډه
ديدن دښکليو کفردی مين زنديق باله شي
اشناهم رانه واړوي لبمی په منډه ، منډه
ژوندون ته خلاصي خولې کړی ډيرو ، وږو مزارونو
رادرومي شبه راغلي ته هديرې په منډه ، منډه
دشمعو زړونه ويلي راخوره د مرګ سيلۍ ده
دسوو پتنګانو وړي ايرې په منډه ، منډه
زما صابره خدايه ته لا اوس هم ورته ګورې
چې تښتي له ابليس نه پرښتې په منډه ،منډه
شو عشق مې لاروی دليونيو په کاروان کې
زړې يې د تنهاکو کړې پښې په منډه، منډه

۱۹۹۳دستمبر ۱٤ پېښور



لکه په خامه بهانه دنجونو اوښکې راځي
ورمې په وروځه له زخمي گلونو اوښکې راځي
د پيغلو سترگوله سرو اوښکو نه تسپې جوړوي
دزاهد لاس کې پر اوړدو تارونو اوښکې راځي
نوم به دسپينو وينو ورکېږم ويني پاتې نه دی
شرم دې نه وي له غلبيلو زړونو اوښکې راځي
څنگه يې څښو ؟ څنگه خنديږو ؟ راته زهر دې شي
په اباسين کې دکابل دغرونو اوښکې راځي
څوک په کې سترگې نښتيځي لکه دانې دانگور ؟
چې دساقي له انگوري جامونو اوښکې راځي

۱۳۷۲ ثور ، پېښور دليکوالو تولنه

# وریښمین لاسونه

تالا پخوا داګلورین او دا وریښمین لاسونه
زما د روح د رویاګانو پرزخمونو ایښي
د رویاګانو پرزخمونو مې خامک جوړوي
ملکوتي جانانه مانه هم ملک جوړوي؟
تاد خپل شعر د بڼ موسکي ګلونه ونښتیځل
یوه رنګینه لپه رنګ دې راوړ
زما په تږي وچ قلم کې تا د رنګ لپه راواړوله
د شعر ملکې تا زما شاعري تانده کړله
زما د شعر د نظر ماتي په نوم
تاخپله تږوله شاعري په اور کې سپانده کړله
ستا ګلورینو او، وریښمینو لاسو
ستا د شعرونو برخه ماته راکړه
زما د شعر استاده
زما د روح په بیابان کې تا د تندې یو کاروان واړاوه
د باراني او ګلورین لاسونه ماته راکړه
د خدای په درکې یې دعا ته راکړه
زما د روح په بیابان کې میشته
د تندې لوی کاروان ته ماته راکړه

۱۳۷۱ د روژې ۲٤ پېښور



شپـــوته مـــې بل، بل اورا ورکې شي رانه پټ شي
خدای د یار په سترګو کې موسکې شي رانه پټ شي
سیند،کې مې دزړه وهي لامبو لکه ماشوم
رنګ شي دخپې غوندې تنکې شي رانه پټ شي
ګډ شوو پرشنه فصل لکه ستوري پرآسمان
لرغوندي اوده سترې شپونکې شي رانه پټ شي
نوم یې په سندرو یادوو خونه رادرومي
خاندي دواده دشپې ژنکې شي رانه پټ شي
واغوندي کالي زما دزړه دسرو غاټولو
خپور په دښتو غرونو کې شینکې شي رانه پټ شي
جوړ مې کړي دروح پرټوکړ ناوې ته ګلونه
دوریښموټو پکې شي رانه پټ شي
شم که لوټ مې کړي کاروان دتلوسو هم
ما نه حپل ځاروان که غلچکې شي رانه پټ شي

۱/ ٤/ ۱۳۷۲ پېښور تاون دآزادافغانستان دلیکوالوټولنه

# خوب

زما اروا لکه صفا او مروه
او زما سترې لالهانده ژوندون
دمهاجرې هاجرې په شانې
په دې صفا مروه کې منډې وهي
یو بېت زمزم لټوي
دارمان مړ اوې گل ته څاڅکي دشبنم لټوي
زما ارمان لکه تنکی اسمعیل
د تودو شگو پر سر
لکه په اور کې دنمرود چې ښکیل وی خیال دخلیل
لکه په سرو گرمو غوړو کې وریت ماهي وي دنیل
زه داروا په دې صفا مروه کې منډې وهم
داوبو رود لټوم
هلته ولاړه دسندرو کیږدی
په دې کیږدی کې ناست دعشق دنړی
یو مستانه او بې پروا قلندر

چې د تسپو پرځای پر سپینو ستورو
په ترنم، ترنم ذکر کوي
لوړ تخیل او ژور فکر کوي
زما ښکالو اوري پوښتنه کوي
اې لیونیه دلته څه لټوي؟
شونډې دې وچې دي او به لټوې؟!
غواړې چې وسوځې ایره ایره شې؟
وایه د عشق توده لمبه لټوې؟
زه وار خطا په تته ژبه وایم
اې قلندره د عشق
زه چې د ښتې تار او پود لټوم
دادروانو اوبو رود لټوم
زه تږی نه یم خوبیگامې شیرین خوب لیدلی
خوب مې لیده دشنه ځنگل په هغه شنه لمن کې
چې د سپوږمۍ له جامه
پرې د نور څاڅکي څڅیدل، څڅیدل
یوې سندریزې مستانه ښاپیرۍ
چې لوپټه یې له تارونو د نغمو وه جوړه
دسوو لوو سرو غاټولو له تغمو وه جوړه

دې ښاپيرۍ له لوښتې وه جوړه کړې ځولۍ
دپاکيزه سوما له گلويي وډکه ترژۍ
دا لوښته يې له وريښمينو لاسوياد راوړه
زما په ښنو کې داگلونه توی شول
زما دروح له ځولۍ
دلو ښتې په دې ځولۍ کې غزلونه توی شول
ما دسوما له گلوډکه کړه ځولۍ د اروا
ماپه ځولۍ کې سندريزې ښاپيرۍ ته غزلونه ورکړل
زه نن سهار درو ياگانو پراس
دسندريزې ښاپيرۍ په لټون
دښايست کلي ته وروړسيدم
دخوب تعبير مې وغوښت
ښاپيرۍ شنه شوه له خندا نه اوپه نازيې ووې
داليونی خوب دې اوبوته وايه
سترگی راډکې شوې دعشق دقلندر له اوښکو
لکه زمزم نه چې جوړه ،جوړه لښتي روان شي
ماداوبوپرځای داوښکو دزمزم پرغاره
بيگانی خوب ووايه

۱۳۷۲/۲/۲۱ پېښور

# دغاټول غوټۍ

دلته خو دسپينو جامې تورې دي
مه رائحه دې چم ته قيصې نورې دي
مه رائحه دې باغ ته دغاټول غوټۍ
دلته په لمن داغونه پورې دي
تاته به دعا ، دعا ،دعا ښکاري
پټې په دعاکې ستغې سپورې دي
گله! دلته گل دی داغزو خوراک
ځان ټولوه ځانگې دې سمسورې دي
واخله دپاکۍ له پاړو گراوده
دلته خپلې ځنې هم منگورې دي
پام چې تاند گوهر لکه دميو ځښې
سترگی سوداگرې شراب خورې دی

۱۳۷۲/۵/۳ پېښور

للو للو کړي د رنګونو بيرۍ وزنګوي

د ډبرين کمر پرسر ديوي مستې نڅاګرې په څېر

وريښمينې پښې ووهي

ستا د وريښمينو پښوله لمسه ،

د ډبرين کمر هم تاند شي او دموم په شان اوبه اوبه شي

د شنه آسمان د رڼو ستورو په شان

هنداري وزيږوي

د تصويرونو يوه ورک کلي ته ډبرې لارې وزيږوي

*****

ستا په لمن کې شته دي پرخې پرخې

د پيغمبر د رڼو اوښکو په شان

د هرې اوښکې په دانه دانه کې زړېي رپي

د لمر تنکي تنکي ورکوټي ماشومان ماشومان

چې ستا په سيمه د ګل پاڼې وړي د شاتو مچۍ

ته دوږمو قلنګ ترې اخلې په خوږو لاسونو

څوک چې په خوند پوهيږي

ستا د خوږو لاسونو لمس د ذايقې پر اوږه وپيژني

د خوږو شاتو په شان

ستا تصويرونه غزالانو هم کرلي دي ،له ترهې نه په ډکو سترګو

لوی طبیب په لاس ورشي. همدابوټی مرګوني شیبې هم لري چې دپښنور دچمنونوترونولاندې ډیرپوډریان ورسره لاس اوګریوان دي.

زه لادډیرو ناویل شویو شعرونو په هجوم کې راګیر یم .لکه ماشوم لاسونه پسې غځوم خودبریښنا دپرک غوندې په لاس نه راځي. دروانې اوږدې تراژیدۍ ډیرې شیبې لکه افسانوي ښاپیرۍ دشعرپه جامو کې راځي ،غواړم چې په غیږکې یې ونیسم خونازونه اواداګانې یې ډیردي ،دسترګوپه رپ کې رانه تری‌تمې شي اوغیره مې تشه پاتې شي.

کله کله چې له ځان سره یوازې شم په ویښه مې خوب یوسي .اوږده شیبه وروسته له الوتکې نه پرتوغندي دلګیدلې اوښ په سوې ناره دویښې له دې خوب نه راویښ شم.ځکه خوویلی شم چې دې پیښنو اودې اوږدې تراژیدۍ زماپرشعرونو سیوری کړی.کیدای شي زماځینې شعرونه رواني بیماران وي ،ګران لوستونکې دې ښه خبر وي او حیرانیږي دې نه.

چنارخبرې کوي په ډیرادب دګرانو لوستونکو حضورته وړاندې کوم.

کاروان،۱۳۷٦هجري لمریز کال دزمري ٥ پېښنور

اهداء :

د سېلابونو د څپو ژبې ته !

د ملالیو د هڅو ژبې ته !

# دکتاب پیژند نه


| | |
|---|---|
| دکتاب نوم : | چنار خبري کوی |
| شاعر : | کاروان |
| خپرندوی : | دناهید کتاب خپرولو مؤسسه |
| دخپرونو نومره : | ۱۳ |
| دخپریدو نیټه: | اسد ۱۳۷٦ - اگست ۱۹۹۷ |
| چاپ ځای : | دانش کتابخانه پیښور |
| تیراژ: | ۱۰۰۰ |
| مهتمم او ګرافیکس : | عبدالحی سحر |
| دپښتی انځورګر : | خیال اریوبي |
| داهداء او عنوان خط : | قمرالدین چشتي |

# دلوی خدای په نامه

زمونږ د کلي خلک متل کوي:ــ« یو په خدای کې او بل په خبرو کې هرڅوک حق لري. »څنار خبرې کوي کې ما دېرې خبرې کړې دي. ځوریږم پردې که خدای مه کړه کومه خبره را نه تشه خبره پاتې شوې وي او سندره کړې مې نه وي، او یا هم ستاسو پرزړونو ښه نه وي لګېدلې. کله کله پرشاعر باندې دمینې او ښکلا داسې لیونې پیریان کښېني چې ځینې څېرې، ځینې ډیرې عادي پېښې او شیبې داسې ورته ښکلې کړي چې پرشاعر دزړه له کومې دایمان غوندې ګرانې شي. شته ډیر داسې شعرونه مې چې د پورتنیو شیبو او کیفیاتو مولود دي. منم چې دا شعرونه به پورو روښانه نه وي، که لږ زما له زړه نه راشئ او زما دزړه د یوه ورته ولګوئ ګوندې بې معنی نه وي. که ښه نه وو دومره ویلای شم چې ارادتاً مې نه دي لیکلي او رانه ویل شوي دي.

یوه بله خبره را په یاد شوه. زمونږ د شاتو مچیو به له ټولونه ښه شات د کوکنارو له ګلونو جوړول. شاعر د شاتو د مچیو په شان له یوې لویې بدرنګۍ نه هم د ښکلا ذرې را ټولولی شي. د کوکنارو په همدې یوه بوټي کې شات هم شته خو چې د شاتو د مچیو په لاس ورشي. دا هم شته چې د یوه